**۹– د ښوونکي لپاره زده کړې (اضافي معلومات او فعالیتونه)**

**د جغرافیې تعریف او څانګې:**

جغرافیه هغه علم دی چې د بشري او طبیعي پدیدو او د هغه د متقابلو اړیکو په باره کې بحث کوي. جغرافیه پر دوو عمده څانګو ویشل شوې ده (طبیعي جغرافیه او بشري جغرافیه).

طبیعي جغرافیه Physical geography: د طبیعي موضوعاتو په باره کې لکه غرونه، سیندونه، اقلیم، د هواحالت، وچې او سمندرونه او د انسان د ژوند سره د هغو د متقابلو اړیکو څخه بحث کوي. طبیعي جوړښتونه د جیولوجي، جیودیزي، کارتوګرافي، نجوم، هایدرولوجي، د نباتاتو د علم او خاورې پېژندنې په ارتباط په بیلو بیلو اقلیمي برخو کې تر څېړنې، مطالعې او ارزیابۍ لاندې نیسي.

بشري جغرافیه (Human Geography) په طبیعي چاپیریال کې د بشري ګروپونو په فردي او ډله ییزو فعالیتونو بحث کوي او له لرغون پېژندنې، بشر پېژندنې، تاریخ، ژبې، ادبیاتو، حقوقو، طب، فلسفې، سیاسي علومو، روانشناسۍ او ټولنپوهنې څخه په خپلو څېړنو او مطالعې کې برخه اخلي. د بشري جغرافیې څانګې عبارت دي له: فرهنګي جغرافیه، سوداګریزه جغرافیه، اقتصادي جغرافیه، تاریخي جغرافیه، سیاسي جغرافیه، ټولنیزه جغرافیه، ښاري او کلیواله جغرافیه او د ښاري ښېګړو (رفاه) جغرافیه، په طبیعي او بشري دواړو څانګو کې د جغرافیې پوهان له کارتوګرافۍ نقشه کشۍ، ریاضي، احصایې او د مصنوعي سپوږمکیو له عکسونو څخه ګټه اخلي.

## د دوهم لوست د تدريس د لارښود پلان

**د تدریس موده ( یو درسی ساعت)**

**مضمون: جغرافیه**

| عنوانونه | د مطالبو بیان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | آیا ځمکه کروی بڼه لري؟ |
| ۲- د زده کړی هدفونه (پوهنیزي، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه تمه کیږي چې د درس ورکولو څخه وروسته لاندنیو موخوته ورسیږي:<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>- د ځمکې د کرې د شکل سره بلدتیا.<br>**جزیي موخې:**<br>- د ځمکې د بهرنۍ څیرې سره بلدتیا.<br>- د ځمکې د ډیرې لوړې او ژورې برخې سره بلدتیا.<br>- د ځمکې د مخ د استوایي او قطبي قطر د ښودلو توان.<br>- د استوا د کرښې او شمالي قطب په توپیر باندې پوهیدل.<br>- دلوی او واحد الله څخه قدرداني کول چې ځمکه یې پیداکړې ده.<br>- د ځمکې دکرې د ساتلو په نسبت د مسؤولیت احساس. |
| ۳- د تدریس ډولونه | له مخې لوستل، توضیحي، ډله ییز کار، پوښتنه او ځواب. |
| ۴- د تدریس ضروری سامان آلات | درسي کتاب، د ځمکې د کرې نمونه (شکل)، تخته (دړه) او تباشیر. |
| ۵- د ارزوني طریقه | لیکلی، شفاهی او عملی کار |
| ٦- تدریسی فعالیتونه او په ټولګي کې زده کړه | د لومړنیو فعالیتونو سرته رسول او د انګیزې پیدا کول.<br>- د تختې په سر د لوست د عنوان لیکل.<br>- آیا ځمکه یوه کامله کره ده؟ |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقي |
| --- | --- | --- |
| - د ځمکې د کرې د شکل په باره کې پوښتنه<br>- د زده کوونکو د نظریو د اوریدو څخه وروسته، د ځمکې د کرې د ګردوالي په باره کې معلومات ورکوي.<br>- د جغرافیایې کرې د ښودلو سره چې د ځمکې د کرې کوچنی مدل دی، د ځمکې د کرې شکل زده کوونکو ته ښیي.<br>- زده کوونکو ته د چوپې خولې لوستلو توصیه کوي.<br>- ستونزمن لغات او اصطلاحات معنی کوي او د ځمکې د بهرنۍ څیرې په برخه کې توضیحات ورکوي.<br>- زده کوونکي په څو ډلو ویشي او هرې ډلې ته فعالیت ټاکي.<br>- د لوست وروستنۍ پوښتنې پوښتي.<br>- د ټولګي د باندې فعالیتونو سپارښتنه کوي. | - د ځمکې د کرویت په باره کې خپل دلیلونه وایي.<br>- زده کوونکي دځمکې دګردوالی د دلایلو تشریح ته غوږنیسي.<br>- د لوست چوپ لوستل او د ستونځمنو لغتونو لیکل.<br>- په ډلو کې ویشل کیږي.<br>- پوښتنو ته ځواب وایي. | ۳۵ دقیقې |

۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱- ځمکه غیر منظمه کره ده.

۲- د استوا کرښه لږه وتلې او د ځمکې قطبونه یوڅه ننوتي دي.

۳- د زده کوونکو د ژوند د چاپیریال په اساس ځوابونه توپیر لري.

۴- دا یوریست څوکه د ۸۸۴۸ مترو په لوړوالي د هند په شمال کې پرته ده.

۵- د ماریانا ژور ځای د چین په جنوب ختیځ کې په آرام سمندر کې ۱۱۰۳۶ متره د سمندر له سطحې څخه ښکته پروت دی.

**۹- د ښوونکي لپاره پوهه (اضافي فعالیتونه او معلومات)**

**د ځمکې کره:**

هغه کره چې موږ او تاسې او د حیواناتو او نباتاتو بې شمېره موجودات په هغې کې ژوند کوي د واټن له نظره له لمر څخه د شمسي منظومې دریمه سیاره ده. د ځمکې واټن له لمر څخه کابو ۱۵۰ ملیونه کیلومتره دی. د لمر وړانګې په ۸ دقیقو او ۱۷ ثانیو کې ځمکې ته رسیږي.

ځمکه کروي شکل لري. خو قطبی شعاع یې ۶۳۵۶ کیلومتره او استوایي شعاع یې ۶۳۷۷ کیلومتره ده. په استوایي او قطبي شعاع کې یې ۲۱ کیلومتره توپیر وجود لري. چې په دې توګه ځمکه د یوې نا منظمې کرې شکل لري. د ځمکې د کرې مساحت (۵۲۰/۰۰۰/۰۰۰) کیلومتره مربع دی. له دې مساحت څخه (۱۵۰/۰۰۰/۰۰۰) کیلومتره مربع یې د ځمکې د مخ لویې وچې، لوی او کوچني ټاپوګان او پاتې (۳۷۰/۰۰۰/۰۰۰) کیلومتره مربع یې اوبه یعنې څلورګونې لوی سمندرونه، سمندرګي او جهیلونه دي.

## د دریېم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت (دوه درسی ساعتونه)

مضمون: جغرافیه

| عنوانونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | د استوا کرښه او اقلیمي سیمې | |
| ۲– د زده کړې هدفونه (پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه تمه کیږي چې د درس ورکولو څخه وروسته لاندنیو موخوته ورسیږي:<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>– د ځمکې پر مخ د استوا له کرښې او اقلیمي سیمو سره بلدتیا.<br>**جزيې موخې:**<br>– د استوا، سرطان او جدي د دایرو له مشخصاتو سره بلدتیا.<br>– د مدارین، (مدارونو) معتدله او سړو اقلیمونو د مفاهیمو سره بلدتیا.<br>– د مجسمې کرې او نقشې څخه د ګټې اخستلو توان پیدا کړي. | |
| ۳– د لوست ډولونه | توضیحي روش، پوښتنه او ځواب او ډله ییزه مباحثه. | |
| ۴– د تدریس ضروري سامان او لوازم | مجسمه کره، نقشه، دایره کش، د چارت کاغذ، د لوست کتاب، تخته او تباشیر. | |
| ۵– د ارزونې ډول | لیکلی، شفاهی | وخت په دقیقې |
| ۶– په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | د لومړني فعالیتونو سرته رسول او د انګیزې پیدا کول، پر تخته باندې د عنوان لیکل، د مجسمې کرې ښودل، د ټولګي په مخ کې د نقشې نصبول. | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - ښوونکی په نیک سلوک سره ټولګی ته ننوځي.<br>- د لوست مقدماتی برخه عملی کړي.<br>- د نوي لوست لپاره د چوپی مطالعی سپارښتنه کوی.<br>- د پوښتنو له ځواب نه وروسته د مدارین سیمې، د استوا کرښه، د سرطان اوجدي دایرې ، قطبي او بېلې بېلې اقلیمي سیمې توضیح کړي.<br>- د مدارین سیمې، دسرطان او جدي دایرې د کرې پر مخ وښيي.<br>- لوست خلاصه کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او د هرې ډلې لپاره بیل بیل مفاهیم ورکړي.<br>- د لوست د اخر پوښتنې و پوښتي.<br>- د ټولګي د باندی فعالیت ته د زده کوونکو پاملرنه راواړوي. | - لوست په چوپه ولولي او هغو نکاتو باندې چې نه پوهیږي له ښوونکي څخه یې وپوښتي.<br>- زده کوونکي په ډلو کې وویشل شي پر ورکړي فعالیت باندې سره بحث وکړي او پایله دې په ټولګي کې بیان کړي.<br>- زده کوونکې دې پوښتنو ته ځواب ووایې. | ۳۵ دقیقې |

۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱- فرضي دایره ده چې د ځمکې کره پر دوو مساوي برخو ویشي.

۲- د حمل او میزان د میاشتو پر لومړۍ ورځې باندې دلمر وړانګی داستوا پر کرښه عمو دی وی.

۳- په جنوبې نیمه کره کې.

۴- د چنګاښ د میاشتې په لومړۍ ورځ د لمر وړانګې پر دې دایرې باندې عمودی لګیږي.

**۹- د ښوونکي لپاره پوهه (اضافي فعالیتونه او معلومات)**

**جغرافیایي اصطلاحات او مفاهیم:**

ښوونکی دې روښانه کړي چې د استوا کرښه د ځمکې ډېره توده سیمه ده او د صفر درجې عرض البلد ښيي. په عین وخت کې د استوا کرښه ځمکه په دوو مساوي برخو ویشي. لمر د ورې او تلې پر لومړۍ نیټې د استوا پر کرښې عمود لګیږي.

د شمالي عرض البلد $\frac{۱}{۲}$ ۲۳ درجو ته دسرطان کرښه وایي ځکه دسرطان په لومړۍ نېټه وربانديې دلمر وړانګې عمود لګیږي. هغه برخې چې دسرطان او جدي کرښو ترمنځ پرتې دي، دمدارین سیمه بلل کیږي. چې اقلیم یې تود، باراني او استوایي دی. دعرض البلد د$\frac{۱}{۲}$۲۳ درجو او $\frac{۱}{۲}$ ٦٦ درجو په منځ کې معتدله سیمه پرته ده چې په دواړو شمالي او جنوبي نیمو کرو کې معتدل اقلیم لري د دانو کښت او ځنګلونه پکې ډېر دي.

د عرض البلدونو د $\frac{۱}{۲}$ ٦٦ درجو او ۹۰ درجو په منځ کې په شمالي او جنوبي نیمو کرو کې بارده (سوړ) اقلیم وجود لري. دا سیمې په دایمې واورو او کنګلونو پوښل شوی دي.

## د څلورم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده (یو درسی ساعت)**

**مضمون: جغرافیه**

| عنوانونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| ۱- دلوست موضوع | شمالي او جنوبي نیمې کرې | |
| ۲- د زده کړې هدفونه (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه تمه کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>- د شمالي او جنوبي نیمو کرو د مفاهیمو سره بلدتیا.<br>**جزيي موخې:**<br>- د شمالي او جنوبي نیمو کرو سره بلد شي.<br>- د مجسمه کرې څخه د ګټې اخستلو توان پیدا کړي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحی، ډله ییزه مباحثه، او د کرې پرمخ کار کول | |
| ۴- د لوست ضروري سامان او لوازم | مجسمه کره، یو بل کروې جسم چې کرې ته ورته وي، د لوست کتاب، تخته او تباشیر. | |
| ۵- د ارزونې ډول | تقریری، لیکلی | وخت په دقیقي |
| ٦- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | دلومړنیو فعالیتونو سرته رسول.<br>دانګیزې پیدا کول، د تختې پرمخ د عنوان لیکل د مجسمه کرې ښودل. | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقي |
|---|---|---|
| - د لومړنۍ مرحلې د تطبیق څخه وروسته دې، د نوي لوست د چوپې خولې مطالعې سپارښت وکړي.<br>- د زده کوونکو د پوښتنو له ځواب ورکولو نه وروسته زده کوونکي غوږ نیسي. د کړې، تختې او تباشیر په مرسته د شمالي او جنوبي نیمو کرو په باره کې دې لازم توضیحات ورکړي.<br>- زده کوونکي په نیم دایره قوسونو کې یو بل ته مخامخ دریږي یوه ډله شمالي نیمه کره او بله ډله جنوبي نیمه کره تمثیلوي. یوه ډله دې له بلې ډلې څخه پوښتنې وکړي.<br>- ښوونکی لوست خلاصه کوي او لنډیز یې وایي.<br>- د لوست وروستۍ پوښتنې له زده کوونکو څخه پوښتي.<br>- د ټولګي څخه د بهر فعالیت سپارښت کوي. | - نوی لوست دې په چوپه ولولي.<br>- زده کوونکي دي پاملرنه وکړي او پرهرڅه چې نه پوهیږي له ښوونکي نه یې پوښتي.<br>- زده کوونکي د ښوونکی د هدایت په اساس په ډلو کې تنظیمیږي د لوست د موضوعاتو په باره کې یوه ډله له بلې ډلې پوښتنې کوي او ځواب ورکوي.<br>- زده کوونکي د پوښتنو ځوابونه وایي. | ۳۵ دقیقې |

۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱- شمالي امریکا، د مرکزي اروپا ټوله لویه وچه، آسیا او د افریقا ډیره برخه.

۲- استرالیا، د افریقا د لویې وچې جنوبي برخه او جنوبي امریکا.

۳- په جنوبي نیمه کره کې.

۴- په شمالي نیمه کره کې.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د استوا کرښه:** د ځمکې کره په دوو مساوي برخو ویشي. شمالي برخې ته یې شمالي نیمه کره او جنوبي برخه یې جنوبي نیمه کره بولي. په شمالي نیمه کره کې د عرض البلد ۹۰ درجې پرتې دي او همدارنګه په جنوبي نیمي کرې کې د عرض البلد ۹۰ درجې وجود لري. د استوا کرښه د عرض البلد صفر درجه ده. په شمالي نیمه کره کې د وچې ډیري قطعې پرتې دي. لکه آسیا، اروپا، شمالي او مرکزي امریکا او د افریقا نیمه ډیره برخه یې په شمالي نیمه کره کې واقع دي. په جنوبي نیمه کره کې د افریقا پاتې برخه، جنوبي امریکا، استرالیا او د سمندرونو زیاته برخه په کې پر ته ده. چې هغې ته نیمه سمندري کره هم ویل شویده.

## د پنځم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده (یو درسی ساعت)**

**مضمون: جغرافیه**

| عنوانونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د ځمکې شمالي او جنوبي قطبونه | |
| ۲- د زده کړې هدفونه (پوهنیزي، مهارتي او ذهنیتي) | زده کوونکو څخه هیله کیږی چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي:<br>هر اړخیزه موخه:<br>د شمالي او جنوبي قطبونو د معنا سره بلدتیا.<br>جزیې موخې:<br>- د شمالي قطب له مفهوم سره آشنا شي.<br>- د ارکتیک او انتارکتیک د دایرو له مفهوم سره بلد شي.<br>- د ځمکې د محور له معنا سره آشنا شي.<br>- د قطبینو، د ارکتیک او انتار کتیک د دایرو د ښودلو توان پیدا کړي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، پوښتنه او ځواب، ډله ییز بحث | |
| ۴- د لوست ضروري سامان او لوازم | مجسمه کره، د نړۍ نقشه، د لوست کتاب، تخته او تباشیر. | |
| ۵- د ارزونې ډول | لیکلی، تقریري. | وخت په دقیقې |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | د لومړنیو فعالیتونو سرته رسول او د انګیزی پیدا کول.<br>د تختې پر مخ د عنوان لیکل، د ځمکې د کرې پرمخ د قطبینو ا و د ارکتیک او انتارکتیک د دایرو ښودل. | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدريس فعاليتونه (د مفاهيمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه | وخت په دقيقي |
| --- | --- | --- |
| – ښوونکی د نوي لوست د مقدماتي برخې له تطبيق نه وروسته د نوي لوست په چوپه لوستل توصيه کوي.<br>– د زده کوونکو د پوښتنو له ځواب څخه وروسته د شمالې او جنوبې قطب مفاهيم تشريح کوي او د مجسمه کرې پرمخ يې ښيي.<br>– د ارکتيک او انتارکتيک د دايرو او د ځمکې د محور مفاهيم د مجسمې کرې پرمخ وښيي او د تختې پرمخ دې انځور کړي.<br>– لوست جمع بندی او خلاصه دی کړي.<br>– زده کوونکي په ډلو کې ويشي او د ټاکلو موضوعاتو په باره کې بحث کوي.<br>– د لوست د پای پوښتنو په مرسته لوست ارزيابي کوي.<br>– د ټولګي د باندی فعاليت ته زده کوونکي ځير کوي. | نوی لوست لولي ا و پر هر څه چې نه پوهيږي پوښتي يې.<br>– زده کوونکي ځير وي او پر هر څه چې نه پوهيږی له ښوونکي څخه يې پوښتي.<br>– په ډلو کې ويشل کيږي د شمالي او جنوبې نيمو کرو په باره کې بحث کوي او پايله په ټولګي کې بيا نوي او ځواب يې ورکوي. | ۳۵ دقيقې |

۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱– په شمالي ۹۰ درجو کې.

۲– په جنوبي ۹۰ درجو کې.

۳– د ځمکې پر محور باندې.

۴– په صفر درجه کې.

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه):**

**محترم ښوونکی پوه شي چې شمالي او جنوبي قطب عبارت دي د محور ورروستی برخې ځخه دځمکی په وضعي حرکت کې.**

**د ځمکې د محور شمالې برخې ته شمالي قطب ویل کیږي او د ځمکې د محور جنوبي برخې ته جنوبي قطب ویل کیږي.**

- **د ځمکې محور یو فرضی خط دی چې ځمکه په یوه شپه او ورځ کې د هغه په چاپیر ګرځي.**
- **د شمالي عرض البلد $\frac{١}{٢}$ ٦٦ درجې دارکتیک د دایرې په نامه او د جنوبي عرض البلد $\frac{١}{٢}$ ٦٦ درجې دآنتارکتیک په نامه یادیږي.**

## د شپږم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده (یوه درسي ساعت)**

**مضمون: جغرافیه**

| عنوانونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | عرض البلد | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې هدفونو ته ورسیږي.<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>- د عرض البلد د مفهوم سره بلدتیا.<br>**جزیې موخې:**<br>- د ځمکې د عرض البلدونو پیژندل.<br>- د عرض البلدونو د اوصافو پیژندل.<br>- د ډیر لوی او کوچني عرض البلد پیژندل.<br>- د مجسمه کرې پرمخ د عرض البلدونو د تشخیص توان پیدا کړي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحې، پوښتنه او ځواب، ډله ییزه مباحثه | |
| ۴- د لوست ضروري سامان او لوازم | مجسمه کرهُ. د نړۍ نقشه، تخته او تباشیر. | |
| ۵- د ارزونې ډول | لیکلي، تقریري. | وخت په دقیقه |
| ٦- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | د لومړنیو فعالیتونو سرته رسول او د انګیزي منځته راوړل. د تختې پر مخ د عنوان لیکل، د مجسمه کرې پر مخ د عرض البلدونو ښودل. | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقي |
|---|---|---|
| – ښوونکی د مقدماتې برخې نه وروسته زده کوونکو ته چوپ لوستل توصیه کوي.<br>– د پوښتنو له ځواب څخه وروسته د مجسمه کرې په مرسته لازم توضیحات ورکوي.<br>– لوست جمع بندی او خلاصه کوي.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشي هره ډله دې شمالي او جنوبي عرض البلدونه رسم کړي.<br>– د لوست د پای پوښتنې له زده کوونکو څخه پوښتي.<br>– د ټولګي څخه د بهر فعالیت توصیه کوي. | – لوست په چوپه لولي په هغه څه چې نه پوهیږي پوښتي او پاملرنه ورته کوي.<br>– زده کوونکي غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په ډلو کې تنظیمیږي او د عرض البلد دایرې رسموي. | ۳۵ دقیقې |

۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱– د استوا کرښه د ځمکې کره پر دوو مساوي نیمو کرو ویشي.

۲– له $\frac{۱}{۲}$ ۲۳ درجو څخه تیریږي.

۳– د ځمکې پر محور.

۴– د عرض البلد ۹۰ درجې ښيي.

۹- د ښوونکي لپاره زده کړې

**د عرض البلد دايرې:**

د عرض البلد دايرې موازي دايرې دي چې په موازي او افقي توګه د استوا له کرښې سره انځور يږي، د عرض البلد ۹۰ درجې په شمالي نيمه کره کې او نورې ۹۰ درجې په جنوبي نيمه کره کې وي چې ټوله ۱۸۰ درجې کيږي. د قطب دايره د عرض البلد ۹۰ درجې ښيي. شمالي قطب د شمالي عرض البلد په ۹۰ درجې کې او جنوبي قطب د جنوبي عرض البلد په ۹۰ درجوکې دی.

د عرض البلد دايرو ته موازي دايرې هم وايي. ځکه د يو بل سره موازي دي او د طول البلد دايرو سره په قايمه زاويه کې واقع کيږي. د عرض البلد ډيره لويه او اوږده دايره د استوا کرښه ده چې (۴۰۰۴۸) کيلومتره اوږدوالی لري. ډيره کوچنۍ يې د قطب دايره ده چې اوږدوالی يې صفر ته رسيږي.

د صفر درجې په عرض البلد کې (د استوا په کرښه) د لمر وړانګې د حمل او ميزان پر لومړۍ نېټه عمود لګيږي او د شمالي عرض البلد پر $\frac{۱}{۲}$ ۲۳ درجو باندې د لمر وړانګې د سرطان د مياشتې پر لومړۍ باندې عمودی لګيږي. د جدې پر دايرې باندې د لمر وړانګي د جدی د مياشتې پر لومړۍ نېټه عمودی لګيږي.

د حمل او ميزان پر لومړۍ نېټه د قطبينو څخه د لمر وړانګې مماس تيريږي. نو ځکه عرض البلدونه د لمر د وړانګو پر لګيدو او د اقليم پر تصنيف باندې يو مهم عنصر شميرل کيږي.



## د اووم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده (یو درسی ساعت)**

**مضمون: جغرافیه**

| عنوانونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د طول البلد زده کړه څه اهمیت لري؟ | |
| ۲- د زده کـــــړې مـــوخې (پـــوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي) | زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>- د طول البلد د اهمیت سره بلدتیا.<br>**جزیي موخې:**<br>- د طول البلد کرښه وپیژني.<br>- د طول البلدونو په مبداء باندې پوه شي.<br>- ختیځ او لویدیځ طول البلدونه له یو بل نه بېل کړی شي.<br>- د طول البلدونو شمېر باندې پوه شي.<br>- د طول البلدونو په منځ کې د وخت توپیر سره بلدتیا ولري. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، کتاب په چوپه لوستل، ډله ییزه بحث، پوښتنې او ځوابونه. | |
| ۴- د لوست ضروري سامان او لوازم | جغرافیایي کره او د نړۍ نقشه، د لوست کتاب، د ښوونکي د لارښود کتاب، تخته او تباشیر. | |
| ۵- د ارزونې ډول | تقریري او لیکلي. | وخت په دقیقې |
| ٦- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | دسلام اچول او لومړني فعالیتونه او د انګیزی منځته راوړل، د ټولګي پر تختې د نوی لوست د عنوان لیکل، د ټولګي په مخ کې د نقشې نصبول، د طول البلد په باره کې یوه پوښتنه. | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقي | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | - زده کوونکي په چوپه مطالعه وکړي او سخت لغتونه له ښوونکي څخه وپوښتي.<br>- زده کوونکي لغتونه او معنا یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>- د پوښتنو ځوابونه ورکوي.<br>- زده کوونکي د لوست مهمو ټکو ته پاملرنه کوي.<br>- زده کوونکي پر دوو ډلو ویشل کیږي او په خپلې ټاکلې موضوع باندې بحث کوي.<br>زده کوونکي ځواب وایي. | - زده کوونکو ته چوپ لوستل اود سختو لغتونو د لیکلو سپارښت وشي.<br>- ښوونکی سخت لغتونه پر تختې باندې لیکي.<br>- ښوونکی د جغرافیایې کرې په ښودلو سره له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې کوم خطونه د طول البلد په نامه یادیږي.<br>- ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه تصحیح کوي او طول البلد له ټولو خصوصیاتو سره تشریح کوي.<br>- ښوونکی د لوست جمع بندی او لنډیز وایي.<br>- زده کوونکي په دوه ډلو ویشي چې هره ډله پر یوې موضوع باندی بحث وکړي.<br>- د ارزیابۍ لپاره د لوست د پای له پوښتنو څخه پوښتنه کوي.<br>- د ټولګي څخه د بهر فعالیتونو سپارښتنه کوي. |

۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱- د طول البلد او عرض البلد د کرښو پر تقاطع باندې.

۲- ۳٦۰ درجې ده ځکه یوه دایره ۳٦۰ درجې لري.

۳- د لندن له ګرینویچ څخه.

۴- د طول البلد کرښو په واسطه.

۵- هغه کرښې چې شمالي قطب او جنوبي قطب سره نښلوي.

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه)**

**د ګرینویچ رصد خانه:**

په کال ۱٦۷۵ کې د لندن د ګرینویچ پارک ته نږدې د انګلستان سلطنتي رصد خانه جوړه شوه. د رصد خانې دنده داوه چې د بیلو بیلو سیمو جغرافیایې طول البلدونه وټاکي او د سمندري بیړیو ګرځیدو خدمات او همدارنګه د ستورو پیژندلو په ارتباط کارونه سرته ورسوي.

سمندر ګرځیدونکي لومړني خلک وو چې د خپلو بیړیو د موقعیت د ټاکلو لپاره د هغه نصف النهار نه چې له دې رصد خانې څخه تیریده ګټه اخېستله.

په کال ۱۸۸۴ م کې د نصف النهار بین المللي کنفرانس په واشنګټن کې جوړ شو. د دې کنفرانس د جوړیدو څخه دمخه هر نصف النهار کولای شو چې د طول البلدونو پیل وپیژندل شي. په دې کنفرانس کې پریکړه وشوه چې هغه طول البلد چې د لندن له ګرینویچ څخه تیریږي د طول البلدونو مبداء یا پیل وي. د دې طول البلد د ښودلو لپاره د برونزویوه فلزی لیکه (نوار) د رصد خانې د محور په امتداد د ځمکې پرمخ کېښودل شوه، چې د ځمکې دوه ختیځې او لویدیځې نیمې کرې له یو بل نه جلا کوي.

نن ورځ د ګرینویچ د موزیم او رصد خانې مجموعه لندن ته نږدې د تایمز د سیند په څنګ کې، د دې ښار یوه دلیدنې وړ ځایونو څخه ده.

## د اتم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده (یو درسی ساعت)**

**مضمون: جغرافیه**

| عنوانونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | د ځمکې وضعي حرکت او پایلې یې | |
| ۲– د زده کړې هدفونه (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږی چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>– د ځمکې وضعي حرکت سره بلدتیا او پایلې یې.<br>**جزیې موخې:**<br>– وضعي حرکت تعریف کړي.<br>– د ځمکې د وضعي حرکت څخه چې څه حاصلیږي د هغه د پایلو نومونه واخلي.<br>– د ساعتونو د اختلاف د حسابولو توان ولري. | |
| ۳– د لوست ډولونه | توضیحی، پوښتنه او ځواب، ډله ییز بحث او د لوست د متن لوستل | |
| ۴– د لوست ضروري سامان او لوازم | د لوست کتاب، د ښوونکي د لارښود کتاب، تخته او تباشیر. | |
| ۵– د ارزونې ډول | لیکلی، شفاهی اوعملي | وخت په دقیقې |
| ٦– په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | د لومړنیو فعالیتونو سرته رسول او د انګیزی منځته راوړل، د تختې پر مخ د لوست د عنوان لیکل، د ځمکې د وضعي حرکت په باره کې یوه پوښتنه.<br>که ځمکه نه څرخیدلی نو څه به شوي وو؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدريس فعاليتونه (د مفاهيمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه | وخت په دقيقي |
|---|---|---|
| - ښوونکی دی زده کوونکو ته هدايت ورکړي چې لوست په چوپه ولولي او ستونزمن لغات په نښه او د ښوونکي څخه يې وپوښتي.<br>- ښوونکی ستونزمن لغات پر تخته ليکي او معنا کوي يې.<br>- د يوې نوې پوښتنې پوښتل چې د ځمکې وضعي حرکت څه پايلې لري.<br>- ښوونکي د زده کوونکو ځوابونه سموي او د وضعي حرکت په تعريف او پايلو باندې خبرې کوي.<br>- زده کوونکي په څو ډلو ويشي او د هرې ډلې لپاره فعاليت د يو طول البلد د ساعت د بدلون په باره کي ټاکي.<br>- د لوست د پای د پوښتنو د ځوابونو پوښتنه کوي.<br>- د ټولګي څخه بهر فعاليتونوته زده کوونکي هڅوي. | - زده کوونکي لوست په چوپه لولي او ستونزمن لغات له ښوونکي څخه پوښتي.<br>- زده کوونکی د لغتونو معنا په خپلو کتابچو کې ليکي.<br>- د پوښتنې ځواب وايي.<br>- په ډلو کې ويشل کيږي.<br>- پوښتنو ته ځواب وايي. | ۳۵ دقيقې |

۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱- د ځمکې دوه ډوله حرکت: وضعې او انتقالي حرکت.

۲- د ځمکې څرخيدل د محور پر شاوخوا د ۲۴ ساعتونو په موده کې.

۳- د طول البلد ۳۶۰ درجې.

۴- ۴ دقيقې.

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعاليتونه)**

د ځمکې کره په هرو ۲۴ ساعتونو کې يوځل د خپل محور په چاپيره څرخي چې دا حرکت د وضعي حرکت په نامه ياديږي. له دې حرکت څخه شپه او ورځ منځته راځي.

د ځمکې د کرې حجم ۱۰۸۳۳۲۰ مليونه کيلومتره مکعب او دروندوالی يې نږدې ۵۹۷۳ ترليون ټنه شمېرل شوی دي.

## د نهم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده (یو درسي ساعت)**

**مضمون: جغرافیه**

| عنوانونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د ځمکې انتقالی حرکت | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي) | زده کوونکي دې د تدریس په پای کې لاندنیو موخو ته ورسي:<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>- د ځمکې د انتقالی حرکت سره بلدتیا.<br>**جزيي موخې:**<br>- د لمریز انقلاب او لمریز اعتدال د معنا سره بلدتیا.<br>- د حضیض او اوج د مفاهیمو سره بلدتیا.<br>- د کال په هر موسم کې د مدار پر مستوی باندې د ځمکې د محور د $\frac{1}{2}$ ۲۳ درجو دمیل د ښودلو توان. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي روش، پوښتنه او ځواب، ډله ییز. | |
| ۴- د لوست ضروری سامان او لوازم | د ځمکې کره، نقشه، تخته او تباشیر، دایره کش او چارت. | |
| ۵- د ارزونې ډول | لیکلی، تقریري. | وخت په دقیقې |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | د لومړنیو فعالیتونو سرته رسول او د انګیزې منځته راوړل.<br>د تختې پر مخ د لوست د عنوان لیکل.<br>د ځمکې د کرې په واسطه د ځمکې د محور میل د مدار پر مستوی باندې د کال په څلورو موسمونو کې وښیي. | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقي | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقې | – لوست په چوپه لولي په هغه څه چې نه پوهیږي له ښوونکي څخه یې پوښتنه کوي.<br>– د ښوونکي تشریحاتو ته پاملرنه کوي.<br>– زده کوونکی په ډلو کې تنظیم شي او د ځمکي انتقالی حرکت رسم کړي او د کال په بیلو بیلو فصلونو کې ورباندی بحث وکړي او نتیجه په ټولګي کې بیان کړي.<br>– ځواب ورکوي. | – د لوست د لومړنۍ برخې د سرته رسولو نه وروسته زده کوونکو ته د چوپ لوستلو سپارښتنه وشي.<br>– د زده کوونکو د پوښتنو له ځوابونو څخه وروسته، د ځمکې د انتقالي حرکت اهمیت او ارزښت تشریح کړي چې څرنګه د کال فصلونه منځته راځي.<br>– د لمر په چاپیر د ځمکې د حرکت تګلاره او د مدار پر مستوي باندې د ځمکې د محور تګ لاره د تختې پر مخ رسم او تشریح کړي.<br>– لوست دې جمع بندي کړي او لنډیز دې ووایي.<br>– زده کوونکي په ډلو کې تنظیم کړي او د فعالیت طریقه تشریح کړي.<br>– دمباحثې پایله جمع بندي کړي.<br>– د ارزیابۍ لپاره دلوست دپاي له پوښتنو څخه ګټه واخلي.<br>– دټولګي څخه د بهر فعالیت سپارښت کوي. |

۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱- د ځمکې د کرې په شمال کې (د قطب دایره) یا په شمالي $\frac{1}{2}$ ٦٦ درجو کې.

۲- لکه چې لمر د سرطان پر کرښې عمود لګیږي په شمالي نیمه کره کې دوبی او په جنوبې نیمه کره کې ژمی وي.

۳- او کله چې لمر د استوا پر کرښې عمود وي لمر د واړه نیمې کرې په مساوي توګه تودي او روښانه کوي.

۴- لمر د سرطان یا جدې پر کرښو عمود وي.

۵- لکه چې لمر د سرطان پر کرښې عمود وي په شمالي قطب کې شپږ میاشتې ورځ وي.

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه)**

**د ځمکې انتقالي حرکت:**

**- ځمکه د لمر په چاپیره خپل انتقالي حرکت د یو کال ۳٦۵ ورځو او شپږو ساعتونو په موده کې بشپړوي.**

**- ځمکه په یو کال کې د لمر په چاپیره خپل انتقالي حرکت پای ته رسوي. د حرکت مدار یې بیضوي وي او لمر یې په یوه محراق کې واقع وي.**

**- د ځمکې ډیر نږدې واټن له لمر څخه ۱۴۷ ملیونه کیلو متره دی چې ورته حضیض وایي.**

**- د ځمکې ډیره لیرې فاصله له لمر څخه ۱۵۲ ملیونه کیلو متره ده چې د اوج په اصطلاح یادیږي.**

**- د ځمکې د انتقالي حرکت په پایله کې کال منځته راځي. د حمل په لومړۍ ورځ کې شپې او ورځې مساوي دي چې د (پسرلي) د اعتدال د ربیعي په نامه یادیږي، وروسته په شمالي نیمه کره کې دوبی یا د دوبي د لمریز انقلاب (صیفي) منځته راځي.**

**په دې حال کې چې په جنوبي نیمه کره کې ژمی وي. وروسته د میزان پر لومړی باندې د شمالي نیمې کرې منی او د جنوبي نیمې کرې پسرلی منځته راځي.**

**د شمالي نیمې کرې د مني اعتدال (خریف) د جنوبي نیمې کرې له پسرلني اعتدال سره مطابقت لري. درې میاشتې وروسته د جدي پر لومړۍ باندې د لمر وړانګې د جدي پر دایرې باندې عمود لګیږي چې د شمالي نیمې کرې ژمنی انقلاب (د ژمي لمریز انقلاب) یا شتوي منځته راځي.**

**د کال موسمونه په معتدله سیمو کې په ډاګه لیدل کیږي د مدارینو او قطبینو په سیمو کې زیات نه احساسیږي.**

## د لسم لوست د تدريس د لارښود پلان

د تدريس موده (يو درسي ساعت)

مضمون: جغرافيه

<table>
<tr><th>عنوانونه</th><th colspan="2">د مطالبو بيان</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">د افغانستان حدود او موقعيت</td></tr>
<tr><td>۲- د زده کړې موخې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي)</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د تدريس په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>هر اړخيزه موخه:<br>- د ټول افغانستان د څلورو خواوو او موقعيت سره بلدتيا.<br>جزيي موخې:<br>- د افغانستان د موقعيت سره بلدتيا.<br>- د افغانستان د څلورو خواوو سره بلدتيا.<br>- شمالي او جنوبي ګاونډي هيوادونه د نقشې پر مخ کې وښيي.<br>- د نړۍ د نقشې څخه د ګټې اخستنې په اساس د افغانستان موقعيت وښيي.</td></tr>
<tr><td>۳- دلوست ډولونه</td><td colspan="2">توضيحي، د متن لوستل، پوښتنه او ځواب، عملي</td></tr>
<tr><td>۴- دلوست ضروري سامان او لوازم</td><td colspan="2">کتاب، تخته، تباشير، د نړۍ نقشه، جغرافيايې د ځمکې کره.</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې ډولونه</td><td>ليکلی، تقريري او عملي</td><td>وخت په دقيقې</td></tr>
<tr><td>۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه</td><td>د مقدماتي فعاليتونو پای ته رسول، د انګيزې پيدا کول: د تختې پرمخ د عنوان ليکل، د ټولګي په مخې کې، د نقشې نصبول.<br>مورِ ولې د افغانستان څلور خواوې او موقعيت لولو؟ موقعيت او حدود يعنې څه؟</td><td>۱۰ دقيقې</td></tr>
</table>

| وخت په دقیقي | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | - زده کوونکي په چوپه لوست ولولي او په هغه څه چې نه پوهیږي له ښوونکي څخه یې وپوښتي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي.<br>۱- په شمالي او شرقي نیمو کرو کې پروت دی.<br>۲- ۶۵۲۰۰۰ مربع کیلو متره.<br>۳- ۵۰۰ کیلومتره.<br>۴- تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان.<br>۵- پاکستان.<br>۶- ایران او چین.<br>- زده کوونکي ځواب ورکوي. | - د مقدماتي مرحلې څخه وروسته ښوونکي زده کوونکي په چوپه لوستلو ته هڅوي.<br>- ښوونکی دې د زده کوونکو د پوښتنو ځوابونه ورکړي او وروسته دې لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړي.<br>۱- افغانستان په کومه نیمه کره کې پروت دی.<br>۲- د افغانستان پرخوالی څومره دی؟<br>۳- زموږ د هیواد نږدې واټن آزاد سمندر ته څومره دی؟<br>۴- زموږ د هیواد شمالي ګاونډي کوم دي؟<br>۵- د هیواد د ختیځ او سهیل ګاونډي هیواد نوم واخلئ؟<br>۶- د لویدیځ او شمال ختیځ ګاونډي هیوادونو نومونه واخلئ؟<br>- ښوونکی زده کوونکي په ډلو کې ویشي او له زده کوونکو څخه غواړي چې د افغانستان ګاونډي هیوادونه د نقشې پر مخ پیدا کړي.<br>- په پای کې د زده کوونکو له زده کړو څخه د لوست د پای له پوښتنو څخه ګټه واخلي.<br>- د ټولګي د باندې فعالیت ته زده کوونکي وهڅوي. |

۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱- د آسیا په جنوب کې.

۲- د آسیا په لویه وچه کې.

۳- ۶۵۲۰۰۰ مربع کیلومتره.

۴- وچې کې چاپیر دی. واټن یې له عربو سمندرګي څخه ۵۰۰ کیلومتره دي.

۵- تاجکستان، ازبکستان، ترکمنستان.

۶- چین.

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه)**

**د افغانستان جغرافیایي موقعیت:**

د افغانستان اسلامي جمهوریت چې د آسیا د لویې وچې په جنوب کې موقعیت لري، په اوسنې حال کې وچې ته چاپیر یو هیواد دی. افغانستان پنځه زره کلن تاریخ لري. افغانستان د پراخوالي په اساس ۶۵۲۲۲۵ کیلومتره مربع پراخوالی لري او د منځنیو هیوادونو په کتار کې ځای لري. افغانستان په نیمه ختیځه کره یعنی د گرینویچ د طول البلد د صفر درجې څخه ختیځ خواته او نیمه شمالې کره کې یعني د استوا د کرښې څخه شمال خواته پروت دی.

د عرض البلد ۲۹ درجې او ۲۲ دقیقې یې له جنوبي برخې څخه او د عرض البلد ۳۸ درجې او ۲۹ دقیقې یې د افغانستان د شمالې برخو څخه تیریږي.

د طول البلد ٦٠ درجې او ۲۸ دقیقی یې د ډیرې لویدیځی برخې څخه او د طول البلد ۷۴ درجې او ۵۱ دقیقې یې د افغانستان د ډیرې ختیځې برخې څخه تیریږي. د هیواد شمال خواته د تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان جمهوریتونه پراته دي. زموږ دهیواد لویدیځ لور ته د ایران اسلامی جمهوریت او د شمال ختیځ لورته یې د چین هیواد سره گډه پوله لرو.

زموږ د هېواد ختیځ او جنوب خواته د پاکستان اسلامي جمهوریت پروت دی چې د ډیورند پر تحمیلي کرښې په نښه شوي دي چې د افغانستان خلک یې په رسمیت نه پیژني. کله چې انگریزانو د هند شبه قاره تر استعمار ی ولکی لاندې درلوده د ډیورند تړون یې په جبرې توگه د افغانستان له پخواني پاچا امیر عبدالرحمن خان سره امضا کړ او د کرښې د هغې خوا اداره یې په موقتي توگه په خپل واک کې واخېسته. کله چې د هند شبه قاره په هند او پاکستان تجزیه شوه د انگریزانو میراث پاکستان ته ورسید.

## د یوولسم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس موده (یو درسی ساعت)

| عنوانونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | طبیعي جغرافیه | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>- د افغانستان له طبیعي جغرافیې سره بلدتیا.<br>**جزيې موخې:**<br>- زده کوونکي د افغانستان له طبیعي جغرافیې سره بلد شي.<br>- زده کوونکي د هیواد د اوبو له سرچینو سره آشنا شي.<br>- د افغانستان له لوړو سطحو سره آشنا شي.<br>- له دښتو سره بلدتیا ومومي.<br>- غرونه او لوړې سطحې له یوبل څخه جلا کړای شي.<br>- زده کوونکي پوه شي چې ټولې طبیعي پدیدې خدای (ج) د انسانانو د ګټې اخیستلو لپاره پیدا کړې دي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، چوپ لوستل، قرائت اوسوال او ځواب | |
| ۴- د لوست ضروري سامان او لوازم | د لوست کتاب، د افغانستان طبیعي نقشه او د غرونو عکسونه، تخته او تباشیر. | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | لیکلي، شفاهي | وخت په دقیقې |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | د پیلوونکو فعالیتونو پای ته رسول او هڅول:<br>د تختې پر مخ د عنوان لیکل د ټولګي په مخ کې د افغانستان د طبیعې نقشې نصبول.<br>د غرونو او دښتو د د تصویرونو ښودل. | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| - د پیلوونکې مرحلې څخه وروسته چوپ لوستل زده کوونکو ته هدایت ورکړ شي.<br>- د زده کوونکو د پوښتنو د ځواب ورکولو څخه وروسته ښوونکی د تختې پر مخ د لوست مهم ټکي یادداشت کړي.<br>- ښوونکی لوست توضیح کوي ا و د لوست پر مهمو ټکو باندې تاکید کوي او له زده کوونکو څخه غواړي چې په هر څه چې نه پوهیږي پوښتنه دې وکړي.<br>- زده کوونکي دې په څو ډلو ویشي او هرې ډلې ته دې موضوعات وسپاري بحث دې پرې وکړي او د خپل بحث پایله په ټولګي کې بیان کړي.<br>- لوست خلاصه او جمع بندی کړي.<br>- د ارزونې لپاره د لوست د پای پوښتنو څخه پوښتنه وکړي.<br>- زده کوونکي دې د ټولګي څخه بهر فعالیت ته وهڅوي. | - زده کوونکي کتاب په چوپه لولي او سخت لغات او اصطلاحات په نښه کوي او پوښتي یې.<br>- د ښوونکي توضیحاتو ته غوږ نیسي او پوښتنه کوي.<br>- زده کوونکي په ډلو وویشل شي د ټاکلو موضوعاتو په باره کې بحث وکړي او د خپلو مباحثاتو پایله د ټولګي په مخ کې بیان کړي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکړي.<br>- زده کوونکي د ټولګي څخه بهر فعالیت پای ته ورسوي. | ۳۵ دقیقې |

۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱- د هندوکش غر، د بابا غر، سپین غر.

۲- اوارې ځمکې چې د غرونو په منځ کې واقع وي او د خپل شاوخوا ځمکو څخه لوړې وي.

۳- د پامیر او واخان لوړه سطح او مرکزي لوړه سطحه.

۴- پامیر د ۶۰۰۰ –۷۰۰۰مترو په منځ کې.

۵- کیله ګي، مارګو، بکوا ...

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه)**

افغانستان یو غرنی هېواد دی چې کابو $\frac{۱}{۳}$ برخه یې غرونو نیولې ده. دا غرونه اکثراً د هیواد په ختیځو، مرکزي او شمال ختیځو برخو کې پراته دي.

د غرونو دا لړۍ په واقعیت کې ډېر مهم طبیعي عامل دي چې افغانستان یې له صحرایي حالت نه ساتلی دي او زمینه یې د غرنیو اورښتونو لپاره برابره کړې ده. د غرونو پرسرونو د خورا زیاتو واورو اورښت او د کنګلونو شتون د لویو سیندونو او زیاتو چینو دمنځته راتګ عامل ګرځیدلی دی او د دې باعث شوی چې د غرونو د لړیو لمنې، ناوې او جلګې ښیرازه شي او د هېواد خلکو ته د کرنیزو او اقتصادي فعالیتونو زمینه برابره شي.

د افغانستان غرنیو برخو په سیمه کې د هېواد خلکو ته حیاتی ارزښت ورکړی دی. لکه د نیل سیند چې د مصر خلکو ته ډېر ارزښتمن سوغات دی. د افغانستان د غرو لړۍ هم زموږ هېواد ته د لوی خدای (ج) ډېر ښه سوغات شمېرل کیږي.

افغانستان له طبیعي نظره د غرنیو سیمو درلودونکی دی چې لوړوالی یې له ۲۰۰۰ – ۷۰۰۰ مترو پورې بدلون مومي.

د افغانستان ډېره لوړه سطحه د پامیر لوړه سطحه ده چې جګوالی یې ۷۰۰۰ مترو ته رسیږي. د پامیر د لوړې سطحې یوه برخه د افغانستان په واخان کې پرته ده چې د نړۍ د بام په نامه شهرت لري. ټیټې سیمې او اوارې برخې، دښتې او صحرا وې چې لوړوالی یې له ( ۲۵۰ – ۲۰۰۰) مترو پورې رسیږي هم لیدل کیږي. په افغانستان کې د جګوالي او ټیټوالي په منځ کې اختلاف ډېر زیات دی.

د افغانستان ډېره ټیټه برخه د خم آب په جنوب لویدیځ کې پرته ده چې ۲۵۸ متره او ډېره لوړه څوکه د هندوکش په غرونو کې د نوشاخ په نامه ۷۴۸۵ متره د سمندر له سطحې څخه جګوالی لري.

## د دولسم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس موده: (دوه درسي ساعتونه)

| سر لیکونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د افغانستان د اقلیم په باره کې څه پوهیږئ؟ | |
| ۲- د زده کړې موخې: (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>- د افغانستان د اقلیم سره بلدتیا.<br>**جزیي موخې:**<br>- اقلیم تعریف کړي.<br>- د صحرایی اقلیم خصوصیات بیان کړي.<br>د مدیترانه یې او مونسون اقلیم ځانګړنې بیان کړي.<br>دستپ او توندرا اقلیمي ځانګړنې یوبل نه تفکیک کړای شي.<br>- صحرایي او غرنی اقلیم سره مقایسه کړای شي. | |
| ۲- د لوست ډولونه | توضیحی، چوپ لوستل، پوښتنه او ځواب،مباحثه | |
| ۴- د لوست مرستندویه توکي | اقلیمې نقشه، اقلیمې عکسونه، جغرافیایي مجسمه کره، کتاب، تخته او تباشیر | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | لیکلی،شفاهی | وخت په دقیقو |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | پیلوونکی فعالیت،هڅونې، د تختې پر مخ د عنوان لیکل<br>د ټولګي په مخ کې د اقلیمي نقشې نصبول. د اقلیم د مفهوم په باره کې د یوې پوښتنې پوښتل. | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقې | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | - زده کوونکي په چوپه لوست لولي پر هغه څه چې نه پوهیږي له ښوونکي څخه یې پوښتنه کوي.<br><br>۱- د یوې سیمې د هواد حالاتو منځنی حد دی په یوه اوږد وخت (لږترلږه لس کاله ) او ټاکلي ځای کې. زموږ هیواد شپږ ډوله اقلیم لري.<br>۲- په سیمه کې اورښت کم او د شپې او ورځې د تودوخې توپیر زیات وي لکه د بکوا دښته.<br>۳- د لوړوالي په اساس د تودوخې درجه کمیږي.<br>۴- تود او وچ دوبی، معتدله او اورښت لرونکی ژمی.<br>۵- په دوبي کې اورښت اوري او هوا یې مرطوبه وي .<br>۶- اورښت په ژمي کې کیږي.<br><br>زده کوونکي په ډلو ویشل کیږي پر ټاکلو موضوعاتو بحث کوي او په ټولګي کې یې بیانوي. | - له پیلونکي فعالیت څخه دې وروسته زده کوونکو ته چوپ لوستل سپارښت وشي.<br>- د زده کوونکو د پوښتنو له ځواب نه وروسته له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي.<br>۱- اقلیم تعریف کړي زموږ هیواد څو ډوله اقلیم لري.<br>۲- د صحرایی اقلیم خصوصیات شرح کړي.<br>۴- د مدیترانه یي اقلیم خصوصیات توضیح کړي.<br>۵- د مونسون اقلیم ځانګړنې بیان کړي.<br>۶- د ستپ واښه لرونکو سیمو ځانګړنې بیان کړي.<br>ښوونکی لوست جمع بندي کوي او په لنډ ډول یې بیانوي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او هره ډله په یوې ټاکلې موضوع باندې بحث کوي.<br>- زده کوونکو باندې د کورني کار سپارښت کوي |

**۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**۱- د یوې سیمې د جوی حالاتو منځنی حد دی.**

**۲- اقلیمې جدول**

| د اقلیم نوم | خصوصیات(ځانگړنې) | پوښښ |
|---|---|---|
| صحرایي | اوربښت کم او تودوخه زیاته – د شپې او ورځې په منځ کې د هوا بدلون زیات | اغزي لرونکي بوټي |
| غرنی | زیات اوربښت له واورې او باران سره | هر راز بوټي |
| مدیترانه یي | وچ او تود دوبی او ژمی یې معتدل او مرطوب | د ستروس د کورنی میوې |
| مونسوني | په دوبي کې باران اوري | د نښتر،ځېړۍ، ځلغوزو او کاوې ونې |
| ستپي | اوربښت په ژمی کې | علفزار (واښه لرونکي) |

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه اضافي معلومات او فعالیتونه:**

**د انسان ټول فعالیتونه د ژوند د دوام لپاره د اقلیم تر تاثیر لاندې دي هغه غذا چې خورو یې اوبه چې څښو یې هغه کالي چې د اقلیم د بدلون په حالت کې یې د بدن د ساتلو لپاره اغوندو، کور چې پکې استوگنه لرو ټول د اقلیم او د هوا د حالت تر تاثیر لاندې دي چې په هغه کې ژوند کوو.**

**باید په نظر کې ولرو چې د تودوخې د درجې، لنده بل او اوربښت ،د ټیټ اوجگ فشار د مرکزونو له امله د افغانستان اقلیم په شپږو برخو ویشلی دي.**

**۱- صحرایي اقلیم : چې د هیواد په جنوب لویدیځ کې وجود لري، دهغه له اوصافو څخه د شپې او ورځې او د کال په اوږدو کې د تودوخې د درجې بدلون دی.یعنې د شپې او ورځې پرله پسې تودوخه او سوړوالی ددې باعث شوی چې ډبرې ماتې شي او شگلن ځایونه منځ ته راشي.**

**۲- غرنی اقلیم: په دې اقلیمې سیمه کې ځمکې د ۵۰۰۰ مترو په لوړوالي موقعیت لري تودوخه په دې سیمه کې کمیږي برخلاف اوربښت او لندبل پکې زیاتیږي د وریځو هر راز لمدې کتلې – او سړې جبهې چې د غرنیو سیمو څخه تیریږي د اوربښت باعث گرځي.**

**۳- مدیترانه یي اقلیم چې دوبی یې ډیر تود او وچ او ژمی یې معتدل دی او واوره په کې نه اوریږي اوربښت یې هر وخت د باران په څیر وي.**

۴- مونسوني اقلیم: د دوبي په میاشتو کې د هند په سمندر کې جگ فشار منځته راځي او د منځنۍ آسیا په دښتو کې د ټیټ فشار مرکز منځته راځي. اوربښت لرونکې وریځې چې وچې خوا ته راځي په هندوستان کې د مونسوني اوربښتونو سبب گرځي.

**یوه برخه یې افغانستان ته راځي چې د سپین غره په جنوب کې ددې راز اوربښت سبب گرځي.**

**۵- د ستپ اقلیم: په هغه کې بوټې او واښه لرونکې سیمې جبې اوشنی و رشوگانی (دکړکو بوټی) شتون لري دڅارویو روزنې ته گټور دی.**

**۶- د الپی توندرا اقلیم: په افغانستان کې د توندرا سیمه د ۲۹۰۰-۳۵۰۰مترو لوړوالي پورې پرتې دي په دې سیمه کې سوړوالی د سنبلې له میاشتې پیل کیږي په ژمي پکې ډیره واوره اوري.**

## د دیارلسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت ( دوه درسی ساعتونه)**

**مضمون: جغرافیه**

| | **د مطالبو بیان** | **سر لیکونه** |
|---|---|---|
| | **غرونه** | ۱- د لوست موضوع |
| | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>- د افغانستان له غرونو سره آشنایي.<br>**جزیي موخې:**<br>- دافغانستان د غرونو په باره کې خبرتیا.<br>- د هندوکش، بابا غره،او سپین غره سره شناخت.<br>- د غرونو په باره کې د مثبت او ښه نظر پیداکول.<br>- د غرونو په باره کې د تحقیق او پلټنې د روحیې غښتلي کیدل .<br>- په طبیعی نقشو کې د غرونو د موقعیت د پیداکولو توان.<br>- د افغانستان د غرونو د اهمیت د پوهیدو توان پیدا کول | ۲- د زده کـــړې موخې (پـــوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) |
| | ډله ییزې خبرې، د متن لوستل،پوښتنې او ځوابونه او گزارش ورکول | **۳- د لوست ډولونه** |
| | د لوست کتاب، د ښوونکی د لارښود کتاب، تباشیر او د افغانستان طبیعي نقشه | **۴- د لوست مرستندویه توکي** |
| وخت په دقیقو | شفاهی.لیکلی او عملی کار | **۵- د ارزونې ډولونه** |
| **۱۰ دقیقې** | پیلوونکي فعالیتونه او هڅونه: د تورې درې پر مخ د عنوان لیکل، د ټولگي په مـــخ کې د نقشې ځړول. د افغانستان د غرونو په باره کې یوه پوښتنه. | **٦- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- له یوه زده کوونکي څخه وغواړو چې نقشې ته نـږدې راشي او د افغانستان مشهور غرونه لکه: هندوکـــش، دبابا غر،سپین غر په نقشه کې وښيي. | ۱- زده کوونکي غرونه په نقشـه کـې وښيي. | ۳۵ دقیقې |
| ۲- ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکړي چې هره ډله د هندوکش غره، دبابا دغره او سپین غره د اهمیت په باره کې یوبل سره خبرې اترې وکړي. | ۲- زده کوونکي د لوست د موضوع پـه اړه د یو او بل ســره خبــرې وکــړي او ستونځمن لغات یاداشت کړي. | |
| ۳- د هرې ډلې استازي د لوست لنډیز په آسانه توګه خپلو ټولګیوالو ته بیان کړي. | ۳- د ډلې استازي لوست په لنډه توګــه خپلو ټولګیوالو ته تشریح کړي. | |
| ۴- ښوونکی له هرې ډلې څخه وغواړي چې یو له بل نــه د لوست په باره کې پوښتنه وکړي او ځواب ووایي . | ۴- هره ډله له یو بل څخه پوښتنه کوي او ځواب وايي. | |
| ۵- ښوونکی د لوست د تحکیم لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي. | ۵- زده کوونکي ځواب وايي. | |
| ٦- ښوونکی لوست جمع بندی او خلاصه کوي او په توره دړه یې لیکي. | ٦- زده کوونکي د لوست جمع بندی ته پاملرنه وکړي. | |
| ۷- د ټولګي دباندې فعالیت لپاره سپارښتنه وکړي. | | |

**۸- دلوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱- دا غرونه ډیر د افغانستان په مرکزي او ختیځو برخو کې پراته دي.

۲- له دې امله چې په لوړو غرونو کې د تودوخې درجه ټیټه ده، واوره یې نه ویلې کیږي او په دایمي توګه واوره د غرونو په څوکو کې پاتې کیږي.

۳- د هندوکش غرله شمال ختیځ څخه پیل شوی د جنوب لویدیځ په لور د بامیانو تر درې پورې غزېدلې چې په مرکزي ساحه کې یې پراخه سیمه نیولې د ه.

۴- د افغانستان په مرکز کې موقعیت لري.

۵- د افغانستان په ختیځ کې پروت دی.

٦- د هیواد غرونه د سیندونو لپاره د اوبو ښه منبع ده د کانی زیرمو لویه منبع لکه: اوسپنه، مس، سرپ، قیمتی ډبــری لکه: یاقوت، لاجورد او نور په هغه کې شته دي. غرونه د هیواد طبیعي شتمني شمیرل کیږي. همدا راز غرونه له نظــامي لحاظه هم اهمیت لري.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات او فعالیتونه:**

لوړې سیمې ددې ځای د میشتو خلکو په ژوند کې ډیر مهم رول لوبوي. زموږ د هیواد ډیره برخه غرونو نیولې ده. دا جگې برخې د ۴۰۰۰ نه تر ۶۰۰۰ مترو پورې لوړوالی لري، زموږ په هیواد کې ډیره لوړه څوکه نوشاخ ده چې ۷۴۸۵ متره د سمندر له سطحې څخه جگوالی لري او د هندوکش په غره کې پرته ده. جگوالی یې له تودوخې سره معکوسه اړیکه لـــري. لوړې سیمې یې سړه هوا او ټیټې برخې یې تودې وي، نوځکه د هندوکش ، د باباغره، سپین غره، سفید کوه، او داسې نورو دهوا تودوخه لږه له ټیټو او اوارو سیمو څخه ده. له بلې خوا د تودوخې د کمیدو سره د اوبو براس په هـــوا کـــې نـــږدې (متراکم) کیږي او په لوړو غرونو کې د واورې او باران د اوریدو لامل کیږي د اورښت اوریدل په لوړو برخـــو کـــې د سیلابونو لامل گرځي او د غروله لمنو څخه په تیزۍ سره خاورې او ختې وړي.

## د څوارلسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت (دوه درسی ساعتونه )**

**مضمون :جغرافیه**

| سر لیکونه | د مطالبو بیان | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د افغانستان سیندونه د کرنې د شریان او د انرژۍ د تولید په توګه | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندنیو موخوته ورسیږي:<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>- د افغانستان د سیندونو د اهمیت سره بلدتیا.<br>**جزیي موخې:**<br>- د افغانستان د سیندونو د سرچینو سره بلدتیا.<br>- د افغانستان د سیندونو څخه د ګټې اخستنې سره بلدتیا.<br>- د افغانستان د پنځه واړو حوضو سره بلدتیا.<br>- د اوبیزو حوضو د پیژندلو توانایي ولري. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، لوستل، پوښتنه او ځواب، ډله ییزه مباحثه، | |
| ۴- د لوست مرستندویه توکي | د افغانستان فزیکي نقشه، د سیندونو عکس،د لوست کتاب، تخته او تباشیر | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | لیکلی، شفاهي، عملی | |
| ٦- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه. | پیلوونکی فعالیت او هڅونه. د تورې دړې پر مخ د عنوان لیکل، د ټولګي په مخ کې د نقشې ځړول.<br>ستاسو په نظر له سیندونو څخه څه ګټه اخېستله کیږي؟ | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقې | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقی | - لوست په چوپه لولي او په څه چې نه پوهیږي له ښوونکي څخه یې پوښتنه کوي.<br><br>۱- واوره او باران.<br>۲- د کرنیزو کارونو لپاره او د بریښنا د تولید لپاره.<br>۳- پنځو حوضو باندې.<br><br>۴- د کوچني پامیرڅخه سرچینه اخلي د ارال جهیل ته تویږي او په افغانستان کې مرستیالان یې کوکچه او کندز دي.<br>۵- د اونی له غاښي څخه سرچینه اخلي په پاکستان کې په اټک کې دسند په سیند کې تویږي. مرستیالان یې د لوګر، پنجشېر، لغمان او د کنړ سیندونه دي.<br>- زده کوونکي په ډلو کې د ورکړ شوي موضوع په باره کې بحث کوي او پایله په ټولګي کې بیانوي. | - د پیلوونکې مرحلې له تطبیق څخه وروسته ښوونکې د چوپ لوستلو سپارښت وکړي.<br>- د زده کوونکو د پوښتنو له ځواب څخه وروسته دالاندې پوښتنې له هغوی څخه کوي:<br>۱- د افغانستان د سیندونو منبع کومه ده؟<br>۲- د افغانستان له سیندونو څخه څه اقتصادي ګټې اخیستل ممکن دي؟<br>۳- د افغانستان سیندونه په څو حوضو ویشل شوي دي؟<br>۴- د آمو سیند منبع، مصب او مرستیالان ئی کوم دي؟<br><br>۵- د کابل د سیند منبع،مصب او مرستیالان کوم دي؟<br>- لوست جمع بندی کوي او لنډیز یې وایي.<br>- د ډله ییز فعالیت سپارښتنه کوي.<br>- د ټولګي دباندې فعالیت سپارښت کوي. |

۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱- دواوروڅخه له ډکو غرونو څخه سر چینه اخلي.

۲- د اورښت او دواورو د ویلي کیدو په اساس زیاتیږي.

۳- د کرني لپاره، د بریښنا د انرژۍ د تولید لپاره او هم د څښلو لپاره ورڅخه ګټه اخیستله کیږي.

۴- څرنګه چې غرني دي او په ډیر ځوړ سره روان دي.

۵- د بریښنا تولید.

٦- د آمو حوزه، کابل، هلمند، هریرود، او تړلې حوزې دي.

۷- تاجکستان،ازبکستان او ترکمنستان

۸- داونی له غاښي، د بابا له غره څخه یې سر چینه اخستې او ختیځ خواته روان دی.

۹- پنجشیر، الیشنګ، الینګار، او کنړ.

۱۰- د کرنی او د بریښنا د تولید لپاره.

**۹- دښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه):**

**د کابل د سیند اقتصادی ارزښت:**

د کابل سیند له اقتصادي نظره زیات ارزښت لري. د کابل د سیند او د هغه له ټولو مرستیالانو څخه د کرنې د ځمکو په منظور زیاته ګټه اخیستله کیږي د کابل له سیند او د هغه د ښی غاړې له مرستیالانو څخه دومره ویالې او نهرونه جلاکیږي چې په پای کې سیند په یوه کوچني نهر باندې بدلیږي د کینې غاړې مرستیالان یې د شتل سیند،سالنګ، غوربند،پنجشیر، الیشنګ، الینګار، او د کنړ سیندونه دي. هر یو ډیرې اوبه لري چې په کرکیله او بریښنا کې تری ګټه اخیستل کیږي او یوه اندازه زیاتی اوبه یې له هیواده څخه بهر ته هم وزي.

له اقتصادي پلوه د بریښنا د بندونو جوړول څه د بریښنا د تولید لپاره او څه د اقتصاد له نظره د کرنیزو ځمکو د خړوبولو لپاره ډیر ارزښت لري.

د کابل سیند او مرستیالان یې د هیواد د لومړۍ درجې سیندونو له جملې څخه شمیرل کیږي او د هغو د اوبو څخه د بندونو په جوړولو سره په زیاته اندازه ګټه اخیستله کیږي دا سیندونه په خپل تګلوري کې زیات ځوړ لري هغه بندونه چې د کابل په سیند باندې جوړ شوي دي د سروبی د بریښنا بند، د نغلو د بریښنا بند، د ماهیپر د بریښنابند، د درونټی دبریښنا بند او د ننګرهار د کانال پروژه او د بریښنا نور بندونه چې د کابل دسیندپه مرستیالانو جوړ شوي دي د جبل السراج د بریښنا بند او د چک وردګ د بریښنا بندونه دي. خو تر ټولو مهم او لوی یې د نغلو دبرښنا بند دی.

## د پنځلسم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت:** (یو درسی ساعت)

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د افغانستان د نورو حوضو سیندونه | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د تدريس په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>**هر اړخيزه موخه:**<br>- دافغانستان د نورو حوضو د سيندونو سره بلدتيا.<br>**جزيي موخې:**<br>- دافغانستان د ډير اوږد سيندسره بلدتيا.<br>- د هريرود سيند سره بلدتيا.<br>- د تړلو حوضو سره بلدتيا.<br>- د افغانستان په طبيعي نقشه کې د سيندونو دپيداکولو مهارت.<br>- په دې عقيده پيداکړي چې اوبه د خدای (ج) لوی نعمت دی او د اوبو څخه پرته ژوند امکان نه لري. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضيحي، لوستل، پوښتنه او ځواب،ډله ييزې خبرې | |
| ۴- د لوست مرستندويه توکي | د افغانستان دسيندونو نقشه، دسيند يو عکس، دلوست کتاب، تخته او تباشير | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | ليکلی، شفاهي، عملي | |
| ٦- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه. | د پيلونکو فعاليتونو پای ته رسول او د هڅولو منځته راوړل. د تورې درې پرمخ د عنوان ليکل او د ټولګي په مخ کې د نقشې ځړول،<br>يوه پوښتنه:<br>آيا فکر کوی چې ژوند د ځمکې پرمخ اوبوسره تړاولري. | ۱۰دقيقي |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| د تدریس د پیلوونکې مرحلې څخه وروسته د لوست د چوپ لوستلو سپارښتنه دې وشي.<br>– د زده کوونکو د پوښتنو له ځواب ورکولو نه وروسته پوښتنه کوي:<br>۱– د افغانستان ډېر اوږد سیند کوم دي.<br>۲– د هلمند د سیند مرستیالان معرفي کړی؟<br>۳– د هلمند پر سیند کوم بندونه جوړ شوي دي؟<br>۴– کوم سیندونه د هلمند په هامون کې توییږې؟<br>۵– د هریرود د حوضې سیندونه کوم دي<br>٦– د ترلو حوضو سیندونه کوم دي؟<br>– لوست دې جمع بندي کړي او لنډیز دې ووایي.<br>زده کوونکي په ډلو ویشي او بیله بیله دنده ورته ورکوي.<br>– د ارزونې لپاره د لوست د پای پوښتنو څخه ګټه اخلي<br>– د ټولګي څخه د بهر فعالیت سپارښت کوي. | لوست په چوپه ولولي او په هر څه چې نه پوهیږی پوښتنه دی وشي.<br>۱– د هلمند سیند چې ۱۴۰۰ کیلو متره اوږد دی.<br>د بابا له غره نه سر چینه اخلی او د هلمند هامون ته توییږي.<br>۲– د موسی کلا او ارغنداب سیندونه.<br>۳– د کجکی د بریښنا بند،ګرشک او د بغرانهر ویاله چې د ناد علی سیمې خړوبوي.<br>۴– خاشرود، ادرسکن او فراه رود.<br>۵– هریرود چې د باباغره له لویدیځ څخه سرچینه اخلي د هرات په ولایت کې له اسلام کلا نه تر ذولفقار پورې روان دی ددې حوضې بل سیند مرغاب دی.<br>٦– هغه سیندونه چې له نوروسیندونو سره نه یو ځای کیږي د غزنی سیند،بلخ آب. سمنګان، اندخوی او قیصارسیندونه دي.<br>په ډلو ویشل کیږی او پوښتنو ته ځواب وایی.<br>– زده کوونکي ځواب وایی. | ۳۵<br>دقیقې |
| ۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:<br>۱– د افغانستان ډېر اوږد سیند د هلمند سیند دی چې ۱۴۰۰ کیلو متره اوږدوالی لري.<br>۲– د هلمند د سیندمرستیالان: د موسی کلا سیند او د ارغنداب سیندونه دي.<br>۳– خاشرود، فراه رود، او ادرسکن.<br>۴– د بریښنا د تولید او کرنې لپاره ورڅخه ګټه اخیستله شوې ده.<br>۵– د بابادغره له لویدیځ څخه یې سرچینه اخیستی ده او د هرات ولایت سمسوروي.<br>٦– زموږ هیواد افغاسنتان او ایران ترمنځ طبیعي پوله جوړوي. | | |

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات او فعالیتونه:**

**د هلمند د سیند اقتصادي ارزښت:**

د بریښنا بندونه چې د هلمند پر سیند او د هغه پر مرستیالانو جوړشوی دي د هغو د اوبو له زیرمو څخه د کرنیزو ځمکو په خړوبولو کې او هم د بریښنا په تولید کې زیاته ګټه اخیستله کیږي هغه لویې پروژې چې د هلمند پر سیند جوړې شوي دي دادي:

۱- د ناد علي پروژه: ددې پروژې کار په کال ۱۳۲۹ کې پیل شوی دی او اوس په پوره توګه د ګټې اخیستنې لاندې ده ددې پروژې اوبه د بغرا د ویالې په واسطه له هلمند څخه جلا شوي د کانال اوږدوالی یې ۳۱۴ کیلو متره دی چې ۸۹۰۰ هکتاره ځمکه خړوبوي.

۲- د مارجې پروژه: دې پروژې په کال ۱۳۳۵ څخه عملي جنبه پیداکړه. کانال یې ۱۹۲ کیلو متره اوږد دی او ۸۱۰۰ هکتاره ځمکه خړوبوي.

۳- د شمالان پروژه: د شمالان د کانال نه د ګټې په اخیستلو سره د ٦۵کیلو مترو په اوږدوالي د ۱۲۷۰۰ هکتارو په شاوخوا کې ځمکې خړوبوي.

۴- د درویشان پروژه: د درویشان د پروژې کرنیزې ځمکې ۲۰۳۰ هکتاره ځمکه ښیي. د کانال اوږدوالی یې ۱۲کیلومتره دی چې د هلمند له سیند څخه اوبه اخلي او کرنیزو ځمکو ته یې ویشي.،

۵- د نهر سراج پروژه: دا پروژه په ۱۲۸۷ کال کې پیل شوې ترکښت لاندې ځمکې یې ۲۴۰۰۰ هکتاره دي دا پروژه د لښکرګاه په لویدیځ کې پرته ده، چاپیریال یې نیمه صحرایي دي چې اوبه په ډیر براس باندې بدلوي.

په دې سیمه کې د هلمند پر سیند باندې د بریښنا ډیر لوی بند کجکي دی دکجکي دبریښنا د تولید قوه په ساعت کې ۳۳۰۰۰ کیلو واټه ده چې د بریښنا څخه یې د کندهار د ښار، بست او ګرشک په روښانولو کې ګټه اخیستله کیږي.

## دشپاړسم لوست د تدريس د لارښود پلان

د تدريس وخت: (دوه درسي ساعتونه)

مضمون جغرافيه

| سرليکونه | د مطالبو بيان | وخت په دقيقي |
|---|---|---|
| ۱- دلوست موضوع | د افغانستان د جهيلونو په باره کې څه پوهيږی؟ | |
| ۲- د زده کړې موخي(پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کونکو څخه هيله کيږي چې دتدريس په پاي کې لاندې موخوته ورسيږي:<br>**هراړه خيزه موخه:**<br>- د افغانستان د جهيلونو سره بلدتيا.<br>**جزيي موخې:**<br>د افغانستان له جهيلونو څخه خبرتيا.<br>د جهيلونو د پيدايښت د طريقو پوهه.<br>د سيستان،شيوا، زرقول او چقمقتين جهيلونو او دغزني د ولاړو اوبو سره بلدتيا.<br>دجهيلونو سره دمثبتو اړيکو پيداکول.<br>په نقشی کې د افغانستان د جهيلونو د پيداکولو توان. | ۳۵ دقيقې |
| ۳- د لوست ډولونه | پوښتنه او ځواب، ډله ييزه بحث، د متن لوستل | |
| ۴- د لوست مرستندويه توکي | د لوست کتاب، د ښوونکی لارښود کتاب، تخته،تباشير،طبيعي نقشه | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | ليکلی، شفاهي او عملي کار | |
| ۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | د پيلوونکو فعاليتونو پای ته رسول او د هڅولو منځته راوړل.<br>د افغانستان د جهيلونو په باره کې څو پوښتنې، د نړۍ پرنقشه باندې د جهيلونو ښودل او د افغانستان پرنقشې باندې د افغانستان د جهيلونو ښودل. | ۱۰دقيقی |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی زده کوونکو ته سپارښت کوي چې د افغانستان طبیعي نقشې ته په کتاب کې په ځیر سره وګوري چې څو جهیلونه پکې وجود لري.<br>۲- ښوونکی زده کوونکو ته دکتاب د چوپ لوستلو سپارښت کوي چې ستونزمن لغات یادداشت کړي او وروسته یې له ښوونکي څخه وپوښتي.<br>۳- ښوونکی ستونزمن لغات له معنی سره پر توري دړې باندې لیکلي.<br>۴- ښوونکی د الف ډلی ته د سیستان د هامون په باره کې او د (ب)ډلی ته د زرقول د جهیل په باره کې او د (ج)ډلی ته د چقمقتین او د(د)ډلې ته د غزني د ولاړو اوبو په باره کې دنده ورکوي؛ چې ورباندې بحث وکړي او وروسته دې د ډلې استازي موضوع په ساده ژبه زده کوونکو ته بیان کړي.<br>۵- ښوونکی زده کوونکو ته سپارښت کوي چې د لوست پوښتنې ولولي او صحیح جواب حافظې ته وسپاري.<br>٦- ښوونکی د لوست د استحکام لپاره له څوزده کوونکو څخه د لوست پوښتنه کوي.<br>ښوونکی لوست د تورې دړې پرمخ جمع بندی او خلاصه کوي او د کورنۍ دندې سپارښت کوي. | ۱- زده کوونکي په ځیر سره نقشې ته ګوري او ځواب ورکوي چې پنځه جهیله.<br>۲- زده کوونکي لوست په چوپه لولي او ستونزمن لغات یادداشت کوي وروسته یې له ښوونکي څخه پوښتنه کوي.<br>۳- زده کوونکي د لغتونو معنی په خپلو کتابچو کې و لیکلی.<br>۴- زده کوونکي د ورکړل شوو موضوعاتو په باره کې سره بحث کوي او وروسته د ډلو استازي په وارسره د تختې مخې ته ورځي او لوست بیانوي.<br>۵- زده کوونکي پوښتنې لولي او صحیح ځوابونه حافظې ته سپاري.<br>٦- زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>زده کوونکي د لوست جمع بندي او لنډیز دی په خپلو کتابچو کی ولیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸- د لوست د پای د پوښتنو ځوابونه**

**دافغانستان د جهیلونو، د پوښتنو ځوابونه:**

۱- ولاړې اوبه چې څلور خواته یې وچه وي هغه ته جهیل ویل کیږي.د افغانستان په ځینو ځایونو کې ترلي حوضې وجود لري چې د جهیل په نامه یادیږي.

۲- لوړ جهیلونه له یخچالی اوبو څخه منځته راځي او د اوارو برخو جهیلونه د سیندونو له اوبو څخه منځته راځي.

۳- د هامون،کول او ولاړو اوبو په نامه.

۴- د افغانستان او ایران په منځ کې سرحد جوړوي.

۵- دزر قول جهیل د پامیر په لوړه سطح کې د افغانستان او تاجکستان د سرحدتر منځ پروت دی.

٦- دواخان سیند.

۷- د بامیانو په ولایت کې.

**۹– ښوونکي ته اضافي معلومات او فعالیتونه:**

افغانستان د طبیعي جوړښت له مخې په ځینو برخوکې ترلې حوزې او یا ټیټې برخې یې منځته راوړي دي چې د جهیلونـــو د منځته راتلو لامل ګرځیدلي دي. دا جهیلونه په بیلو بیلو ځایونو کې بیل بیل نومونه لري. زموږ په هیواد کې جهیل د کول، هامون او ولاړو اوبو په نامه هم یاد شوی دی. د افغانستان جهیلونه دادي: دسیستان هامون، دپوزک هـــامون، د صـــابري هامون، زرقول، د چقمقتین کول،د شیواجهیل، د غزني ولاړې اوبه، نـــاور او دامیـــر بنـــد. د هلمنـــد هامون،دسیســـتان هامون،دپوزک هامون،د صابری هامون، او ګودزیره د هیواد په جنوب لویدیځې برخې کې د نیمروز په ولایت کې د هلمند د سیند، فراه رود،خاشرود، ادرسکن، او د ګودزیری د سیندونو له اوبو څخه جوړ شوی دی. د هلمند هامون چې په سیمه کې لوی هامون دی تر یوې برخې پورې د افغانستان او ایران ترمنځ پوله جوړوي.

د چقمقتین جهیل، زرقول او شیوا د بدخشان په ولایت کی او د امیر بند په بامیانو کې دي.

جهیلونه د الوتونکو لپاره لکه هیلۍ چې د تودوسیمو څخه سړو سیمو ته یاددې په خلاف مهاجرت کوي خوړو دهستو ګنی ځای او د ژوند ښه سیمه ده.

## د اوه لسم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت (یو درسی ساعت)

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | بشري جغرافیه | |
| ۲– دزده کړې موخې(پوهنیزې،مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کی لانـدې موخو ته ورسیږی:<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>**د افغانستان د بشري جغرافیې سره بلدتیا**<br>**جزیې موخې:**<br>**د بشري جغرافیې سره آشنایي.**<br>**د افغانستان د دین، ژبو، قومونو او نفوس په باره کې خبرتیا.**<br>**د افغانستان د بشري جغرافیې په باره کې د مثبتې هڅـونې منځتـه راتلل .**<br>**د افغانستان د بشري جغرافیې په باره کــې د پوښـتنې او پلټنــې د روحیې پیداکیدل.**<br>**د افغانستان د بشري جغرافیې د تحلیل او تجزیې توان پیداکیدل.** | |
| ۳– د لوست ډولونه | پوښتنه او ځواب،ډله ییزه خبری، د متن لوستل او ګزارش | |
| ۴– د لوست مرستندویه توکي | درسی کتاب، د لوست لارښود کتاب،تخته،تباشیر،او نقشه | |
| ۵– د ارزونې ډولونه | شفاهي، لیکلي، عملي | |
| ۶– په ټولګي کــې د تــدریس او زده کړې فعالیتونه | د پیلوونکو فعالیتونو پای ته رسول او هڅونکي فعالیتونه:<br>د ټولګي په مخ کې د نقشې ځړول. د بشري جغرافیې په باره کــې پوښتنه. | ۱۰دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته هدایت ورکړي چې د بشري جغرافیې لوست په چوپه ولولي ستونزمن لغات په نښه کړي او وروسته یې پوښتنه وکړي.<br>– ښوونکی ستونزمن لغات پر تورې درې لیکي او معنا کوي یې.<br>– ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه غواړي چې لوست تشریح کړي.<br>– ښوونکی یو زده کوونکي ته هدایت ورکوي چې د قومونو، ژبو او دین لوست په جګ اواز ولولي او نور ورته غوږ کیږدي.<br>– ښوونکی له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې قومونه ژبې او دین تشریح کړي.<br>– ښوونکی دې د لوست د ټینګښت لپاره د لوست په باره کې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي چې ډاډه شي زده کوونکو لوست زده کړی دی.<br>– ښوونکی لوست جمع بندي او خلاصه کوي او په توره دړه یې لیکي.<br>– دلوست د پای پوښتني له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي.<br>– د ټولګي بهر فعالیتونه زده کوونکو ته سپارښت کوي. | – زده کوونکي په چوپه لوست لولي ستونزمن لغات په نښه کوي او وروسته یې له ښوونکي څخه پوښتنه کوي.<br>– زده کوونکي د لغاتو معنا په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– یو زده کوونکی لوست تشریح کوي.<br>– زده کوونکي لوست په غورسره اوري.<br>– زده کوونکي لوست تشریح کوي.<br>– زده کوونکي ځواب ورکوي.<br>– زده کوونکي د لوست جمع بندي او لنډیز دی په خپلو کتابچو کې لیکي. | ۳۵ دقیقې |

۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱– د وګړو ګڼوالی په ختیځو برخو کې زیات او په جنوب لویدیځو او مرکزي سیمو کې لږ دی.

۲– ټوله هغه خلک چې دافغانستان په جغرافیایي محدوده کې ژوند کوی افغان نومیږي.

۳– په افغانستان کې د دیرشو څخه زیاتی ژبې او لهجې شته دي د هیواد مهمې ژبې دا دي: پښتو، دري، بلوڅي، ازبکي ترکمني، پشه یي، نورستاني، زیباکي او اشکاشمي.

۴– پښتو. او دری.

۵– اکثریت خلک د حنفي مذهب پیروان دی لږ شمېر د جعفري او اسماعیلیي مذهب پیروي کوي او یو لږ شمیر هندوان هم په هیواد کې ژوند کوي.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات او فعالیتونه:**

د جغرافیې د علم یوه څانګه. بشري جغرافیه ده چې د انسان او انساني فعالیتونو په باره کې بحث کوي. خلک د ځمکې په ټولو ځایو کې په مساوی اندازه ویشل شوي نه دي. په بل عبارت د اقلیمي شرایطو د مساعدت په نظر کې نیولو په اساس د ځمکې جګوالی او د نورو طبیعي، اقتصادي. ټولنیزو او سیاسي عواملو په اساس د وګړو ګڼوالی په بیلو بیلو سیمو کې سره یو شان نه دې په دښتو او صحرایي سیمو کې په لوړو ساحو کې، د غرونو په لړیو او جبه زارو ځمکو کې په زرګونو کیلو مترو کې د انسان اثر هیڅ نشته. په داسې حال کې چې په هغو ځاییونو کې چې اقلیمي شرایط برابر دي زیات شمیر خلک ژوند کوي.

زموږ په هیواد افغانستان کې له دیرشو څخه زیاتې ژبې رواج لري. چې په بیلو بیلو سیمو کې ورباندې خلک خبرې کوي د افغانستان د ژبو اهمیت د هغو د ویونکو په شمیر کې دی چې پر هغې ژبی خبري کوي. د مثال په توګه په پښتو او دری ژبو د هیواد په ډیرو برخو کې خبرې کیږي. کابو د هیواد ټول خلک ورسره بلدتیا لري. په داسې حال کې چې په اورمړي ژبه په څو محدودو کلیو کې خبري اتري کیږي.

## د اتلسم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت: (دوه درسي ساعتونه)

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د افغانستان اقتصادي جغرافیه | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>**هر اړخیزه موخه:**<br>- د افغانستان د اقتصادي جغرافیې سره آشنایي.<br>**جزیي موخې:**<br>- د کرنیزو فعالیتونو او د هغو له اهمیت سره د افغانستان په اقتصاد کې آشناشي.<br>- د غنمو د کرنې له حاصل او د هغو د کروندو له سیمو سره آشناشي.<br>- د وریجو د حاصل په اهمیت پوه شي.<br>- د جوارو د کروندو د سیمو نوم واخلي.<br>د مهمو کرنیزو محصولاتو سیمې د نقشې پر مخ وښودلی شي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | خبرې کول، پوښتنه او ځواب، ډله ییزه خبرې او توضیحي. | |
| ۴- د لو ست مرستندویه توکي | د لوست کتاب، د لوست د لارښود کتاب، تخته،تباشیر او د افغانستان اقتصادي نقشه | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | شفاهي،لیکلی، کورنۍ دنده | وخت په دقیقو |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | پیلوونکي فعالیتونه او هڅونه:<br>د تورې دړې پر مخ د لوست د عنوان لیکل،<br>آیا پوهیږئ چې اقتصادي جغرافیه د کومو موضوعاتو په برخه کې څیړنه کوي؟ستاسو په نظر کرنه په افغانستان کې څه اهمیت لري؟ | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقې | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | د هغه په شاوخوا کې څه ویل<br>– چوپ لوستل او د ستونز منو لغتونو پوښتنه کول.<br><br>– په ډلو کې وویشل شي او په فعالیتونو کې برخه واخلي.<br><br>پوښتنو ته ځواب وايي. | – د اقتصادي جغرافیې په برخه کې یوه پوښتنه.<br>– د زده کوونکو د نظریاتو د اوریدو څخه وروسته داقتصادي جغرافیې په باره کې معلومات ورکړي. زده کوونکو ته سپارښت وشي چې لوست په چوپه ولولي.<br>– ښوونکی د لوست ستونزمن لغات او اصطلاحات توضیح کړي او پوښتنه وکړي چې کرنه د افغانستان په اقتصاد کې څه اهمیت لري.<br>– ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه سموي او په افغانستان کې د کرنیزو حاصلاتو په باره کې معلومات ورکوي.<br>– زده کوونکي په څو ډلو ویشي او د هرې ډلې لپاره فعالیت ټاکي.<br>– د ډلې استازي د بحث پایله ټولګیوالو ته اوروي.<br>– د لوست د پای د پوښتنو د ځوابونو پوښتنه کوي.<br>– د ټولګي څخه دباندې فعالیت سپارښتنه کوي. |

**۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱– غنم،جوار او وریجې.

۲– څرنګه چې د افغانستان د خلکو ۸۵ په سلو کې خلک له کرنیزو حاصلاتو څخه ګټه اخلي.

۳– د غنمو کښت په منې او پسرلي کې په اوبیزه توګه په ځمکو کې کرل کیږي.

۴– للمی غنم د حوت اوحمل په میاشتو کې د غونډیو په لمنو او اوارو ځمکو کې کرل کیږي او د باران په اوبو اوبه کیږي.

۵– دوریجو بوټي په هغو سیمو کې چې تود او لوند اقلیم او زیاتې اوبه لري ښه حاصل ورکوي.

۶– د اوبو لرونکو ځمکو د غنمو کرنه په منې او پسرلي کې او دللمي غنمو کښت د حوت او حمل په میاشتو کې سرته رسیږي.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات او فعالیتونه:**

د افغانستان اقتصادي جغرافیه په ټولو کرنیزو موضوعاتو مواصلاتي، د طبیعي زیرمو تولیداتو، فلزاتو، نفتو، ګازونو، سرو زرو، سپینو زرو او نورو استهلاکي توکو، وارداتو، صادراتو او د هېواد پر ملي عاید باندې بحث کوي.

باید ووایو چې د ځمکې د جوړښت په اساس د وریجو، غنمو، اوربشو او جوارو د کرنې ځایونه د سیمو د اقلیم سره اړیکه لري او د اوبو د انرژۍ تولید هم د هېواد په اوبو لرونکو حوضو پوري اړه لري چې د کابل سیند دا وبو د بریښنا د تولید په اساس لومړی مقام لري.

## د نولسم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس موده (دوه  درسی ساعت)

| سرليکونه | د مطالبو بيان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | طبي او صنعتي بوټي | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنيزې، مهارتي اوذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو لاس بری ومومي.<br>هر اړخيزه موخه:<br>- د افغانستان طبي او صنعتي بوټي وپيژني.<br>جزيې موخې:<br>- د هر ډول صنعتي بوټو نومونه واخلي.<br>- په افغانستان کې د هر راز صنعتي بوټو د تيت والی سره آشنا شي.<br>- د طبی بوټو په ا هميت باندی پوه شي.<br>- د هر راز طبی بوټو نوم واخيستلای شي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | خبرې، پوښتنه او ځواب، ډله ييزې خبرې، تشريحي | |
| ۴- د لوست ضروري سامان او لوازم | کتاب، تخته، تباشير، د طبي او صنعتي بوټو عکسونه | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | ليکلي، شفاهي او کورنۍ دنده | وخت په دقيقې |
| ۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | **پيلوونکی فعاليت او د انګيزې پيدا کول:**<br>- د تختې پر مخ د سرليک ليکل او د زده کوونکو څخه پوښتنې کول.<br>- آيا د افغانستان له صنعتي او طبي بوټو سره آشنا ياست؟ د څو ډولونو نومونه واخلئ.<br>- ستاسو په نظر په افغانستان کې د طبي او صنعتي بوټو اهميت څه دی؟ | ۱۰ دقيقې |

| ۷- د ښوونکي د تدريس فعاليتونه (د مفاهيمو زده کړه او ارزونه) | - د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه | وخت په دقيقې |
|---|---|---|
| – د افغانستان د طبي او صنعتي بوټو د اقتصادي ارزښت خصوصياتو په باره کې پوښتنه کوي.<br>– د زده کوونکو د نظرياتو د اوريدو څخه وروسته د بوټو اقتصادي ارزښت بيان کړي او ښوونکی سپارښت کوي چې زده کوونکي لوست په چوپه خوله ولولي او وروسته ستونزمن لغات او اصطلاحات توضيح کړي.<br>– د نويو پوښتنو پوښتل چې زموږ د هېواد صنعتي بوټي کوم دي او په کومو ځايو کې لاسته راځي.<br>– ښوونکی د زده کوونکو پوښتنې سموي او د صنعتي او طبي بوټو د تشريح او تيت والي لپاره د افغانستان له نقشې څخه کار اخلي.<br>– زده کوونکي په څو ډلو ويشي ا و د هرې ډلې لپاره فعاليت ټاکي د ډلې استازي پايله ټولګي ته بيانوي.<br>– د لوست د پای د پوښتنو څخه پوښتنه کوي.<br>– د ټولګي څخه د باندې فعاليت سپارښتنه کوي. | – د هغه په شاوخوا کې د نظر بيانول.<br>– لوست په چوپه لوستل او د ستونزمنو لغتونو پوښتنه کول.<br>– د پوښتنو ځواب ووايي.<br>زده کوونکي ځيروي او هغه څه چې نه پوهيږي پوښتي.<br>– زده کوونکي په ډلو ويشل کيږي او په فعاليت کې برخه اخلي.<br>– پوښتنو ته ځواب ووايي. | ۳۵ دقيقې |

**۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱– پنبه د سمنګان، بلخ، هرات، هلمند، ننګرهار، لغمان، پروان او کاپيسا په ولايتونو کې کرل کيږي.

۲– د پنبې له تارونو څخه راز راز سپينسين ټوکران، سطرنجۍ، جوال، رسۍ او له دانو څخه يې نباتي غوړي د کاليو مينځلو صابون او له پاتې برخې (تفاله) څخه يې د څارويو لپاره کنجاړه جوړيږي.

۳– د قند په فابريکه کې له چغندرو څخه بوره جوړوي او له پاتې برخې (تفالې) څخه يې د څارويو د خوراکي موادو په حيث کار اخلي.

۴– په توده او لمده هوا کې چې ډيرې اوبه ولري.

۵– زعفران، خوږه وله، (هنجه) او زيره.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافې معلومات او فعالیتونه:**

- په افغانستان کې صنعتي نباتات عبارت دي له پنبې څخه چې په شمالي برخو، ننگرهار او کوهستان کې کرل کیږي او د سپېسیو په صنعت کې پکاریږي.

- چغندر د بغلان په ولایت کې ډیر کرل کیږي چې د بغلان د قند (بورې) په فابریکه کې ورڅخه گټه اخیستل کیږي.

- گني په ننگرهار کې زیات حاصل ورکوي چې گوړه ورڅخه جوړوي.

- په افغانستان کې طبي بوټي زیات دي لکه: خوږه وله چې په شمالي برخو او ارزگان کې لاسته راځي.

- د اغزیو بوټي، نعناع، سپیغول، زعفران او نور په ټول هېواد کې شنه کیږي او بهرته هم صادریږي.

## د شلم لوست د تدریس د لاربنود پلان

**د تدریس موده (دوه درسی ساعتونه)**

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د افغانستان له مالدارۍ، څړځایونو او ځنگلونو څخه څه پوهیږئ؟ | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>هر اړخیزه موخه:<br>- د افغانستان د مالدارۍ، څړځایونو او ځنگلونو سره آشنایي.<br>جزیې موخې:<br>- د اهلي او وحشي حیواناتو نومونه واخلي.<br>- په افغانستان کې د مالدارۍ د پراختیا لپاره د څړځایونو د اهمیت په باره کې توضیحات ورکړي.<br>- په افغانستان کې د ځنگلونو د اهمیت په باره کې پوهه پیدا کړي. | |
| ۳- د تدریس ډولونه | خبرې، پوښتنه او ځواب، ډله ییزې خبرې، تشریحي | |
| ۴- د تدریس مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د مالدارۍ ، څړ ځایونو او ځنگلونو عکسونه | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | لیکلي، شفاهي او عملي فعالیت | وخت په دقیقې |
| ۶- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **پیلوونکی فعالیت او د انگیزې پیدا کول:**<br>- د تختې پرمخ د لوست د عنوان لیکل، له زده کوونکو څخه پوښتنه.<br>- آیا پوهیږئ چې زموږ په هېواد افغانستان کې مالداري د کورنیو په عوایدو کې یوه مهمه شتمني گڼل کیږي.<br>- ستاسو په نظر څړځایونه او ځنگلونه څه اهمیت لري؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | - د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| – زده کوونکو ته د چوپ لوستلو سپارښت وشي.<br>– د اصطلاحاتو او ستونزمنو لغاتو توضیح ورکوي او نوي پوښتنه مطرح کوي د مثال په توګه مالداري په افغانستان کې په څو برخو ویشل شوې ده.<br>– ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه سموي او د نوې موضوع په طرحه کولو چې څرګ ځایونه څه ارزښت لري کار پیل کوي.<br>– زده کوونکي په څو ډلو ویشي او د هرې ډلې لپاره فعالیت ټاکي.<br>– د لوست د پای پوښتنې پوښتي.<br>– د ټولګي د باندې فعالیت سپارښت کوي. | – چوپه مطالعه کوي او دستونزمنو لغتونو پوښتنه کوي.<br>– د پوښتنو ځواب وایي.<br>– زده کوونکي په ډلو کې تنظیمیږي.<br>زده کوونکي ځوابونه وایي. | ۳۵ دقیقې |

**۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

جدول:

د ۱ عدد، د (د) له توري سره رابطه لري.

د ۲ عدد، د (و) له توري سره رابطه لري.

د ۳ عدد، د (ب) توري سره رابطه لري.

د ۴ عدد، د (الف) له توري سره رابطه لري.

د ۵ عدد، د (ج) له توري سره رابطه لري.

د ٦ عدد، د (ح) له توري سره رابطه لري.

د ۷ عدد، د (ز) له توري سره رابطه لري.

د ۸ عدد، د (هـ) له توري سره رابطه لري.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافي معلومات او فعالیتونه:**

په افغانستان کې په زیاته پیمانه مالداري رواج لري. د مثال په توګه په شمالي برخو کې آس، پسونه او د قره قل پسونه په زیات شمیر روزل کیږي.

- په کندهار، غزني او د هزاره جاتو په لوړو سطحو کې د زیاتو څرګ ځایونو د موجودیت په اساس زیات شمېر پسونه او وزې روزل کیږي چې د هغو له وړیو غوښې پوستکي او کولمو څخه زیات عایدات لاسته راځي.
- وحشي حیوانات هم د آمو د سیند په سواحلو او د افغانستان په دښتو او لویو ځنګلونو کې شته.

## د یوویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس موده (دوه درسي ساعتونه)

مضمون: جغرافیه

| سرليکونه | د مطالبو بيان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | کانې زيرمې | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>هر اړخيزه موخه:<br>- د افغانستان د کانې زيرمو سره آشنايي.<br>جزيي موخې:<br>- د افغانستان د هر راز مهمو کانونو نومونه واخلي.<br>- د افغانستان د کانونو هر راز تيتوالی د نقشې پرمخ وښودلای شي.<br>- د افغانستان په اقتصاد کې د کانونو د ګټې اخيستنې اهميت بيان کړي.<br>- په ژوند کې د کانونو د کار اخيستنې سره آشنا شي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضيحي، پوښتنه او ځواب، ډله ييز بحث او خبرې | |
| ۴- دلوست مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، دکانونو نقشه او عکسونه يې | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | ليکلی، شفاهي او عملي فعاليت | وخت په دقيقې |
| ۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | **پيلوونکی فعاليت او د انګيزې پيدا کول:**<br>- د تختې پرمخ د عنوان ليکل.<br>- ستاسوپه نظر دکانونو څخه ګټه اخيستل زموږ د هېواد په اقتصاد کې څه اهميت لري؟<br>- آيا د افغانستان په ټولو ځايو کې کانونه په يو شان دي؟<br>- په هغه ځای کې چې تاسو ژوند کوئ کوم کان شته دی؟ | ۱۰ دقيقې |

| وخت په دقیقې | - د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقې | – د هغه په شاوخوا کې ځواب ورکول.<br>– د نوي لوست په چوپه لوستل او د ښوونکي څخه د ستونځمنو لغاتو پوښتنه کول.<br>– د پوښتنو ځوابونه وایي.<br>– زده کوونکي په ډلو کې ویشل کیږي او دکانونو د نقشې د لیدلو په اساس پوښتنو ته ځواب وایي.<br>– پوښتنو ته ځواب وایي. | – د کانونو د اقتصادې اهمیت په باره کې یوه پوښتنه.<br>– ښوونکی د زده کوونکو د نظریو د اوریدلو نه وروسته د افغانستان په اقتصاد کې د کانونو اهمیت بیان کړي او وروسته زده کوونکو ته د لوست په چوپ لوستلو سپارښت وکړي.<br>– ستونزمن لغات او اصطلاحات بیان کړي.<br>– نوې پوښتنه کوي. د افغانستان مهم کانونه کوم دي؟ او یا په کوم ځای کې چې تاسی ژوند کوئ کوم کانونه شته او له هغو څخه څه ګټه اخیستل کیږي؟<br>– ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه سموي او د کانونو د ډولونو او د هغو څخه ګټه اخیستل په ژوند کې معلومات ورکوي.<br>– زده کوونکي په بیلو بیلو ډلو ویشي او له هرې ډلې غواړي د کانونو د تیتوالي په باره کې سره بحث وکړي او پایله ټولګي ته واوروي.<br>– د لوست د پای پوښتنو پوښتنه کوي.<br>– د ټولګي څخه د باندې فعالیت سپارښت کوي. |

**۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**۱– د جغرافیایي سیمو کانونه.**

**اوسپنه د ارزګان په ولایت کې او د بامیانو په حاجی ګک کې پیدا کیږی.**

**مس د لوګر په عینک کې، دمیدان کهنه خمار، پنجشیر او بدخشان کې پیدا کیږی.**

**سره زر په زابل او کندهار کې.**

**سپین زر په پنجشیر او د هرات په سیم کوه کې.**

**قیمتی ډبرې د بدخشان په غرونو کې.**

**سرپ او جست په هزاره جاتو او د هندوکش د غرو په لمنو کې**

**مالګه د تخار تالقان او د جوزجان په اندخوی کې.**

**سلفر په مزار شریف کې.**

**۲– د کروند ګری په سامان آلاتو کې، نجاری او د کورو په جوړولو کې پکاریږی.**

**۳– د بریښنا او تودوخې قوي هادي ده.**

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات او فعاليتونه:**

- افغانستان د طبيعي زيرمو په لحاظ ډير بډای دی، لکه نفت او طبيعی ګاز په سرپل کې، اوسپنه په حاجی ګک کې، مس د لوګرو په عينک کې، او سره زر د ارغنداب او کوکچې په حوزی کې.
- په افغانستان کې قيمتي ډبرې هم زياتې دي. لکه لاجورد د بدخشان په سرسنګ کې ، زمرد په پنجشير کې.
- مالګه په تالقانو او هرات کې.

همدا کانونه دي چې د هېواد د ملي شتمنۍ ډير عايد جوړوي.

## د دوه ویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس موده (یو درسی ساعت)

مضمون: جغرافیه

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | کاني د سون توکي | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>- د افغانستان د کاني سونګ توکو سره بلدتیا.<br>جزیې موخې:<br>- د افغانستان د سونګ د توکو د بیلو بیلو سرچینو سره آشنایی.<br>- د ډبرو د سکرو او نفتو د پیدایښت منشأ توضیح کړي.<br>- په ژوند کې له نفتو او طبیعی ګازو د کار اخیستو سره آشنا شي.<br>- د نقشې پر مخ د کاني سونګ موادو ځایونه وښیي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | ډله ییز بحث، خبری کول، پوښتنه او ځواب او توضیحی | |
| ۴- دلوست مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د کاني سونګ توکو نقشه او عکسونه یې. | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | لیکلی، شفاهي او عملي کار | وخت په دقیقې |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **پیلوونکی فعالیت او د انګیزې پیدا کول:**<br>- د تختې پرمخ د لوست د عنوان لیکل.<br>- ستاسو په نظر د نفتو او ډبرو سکرو د پیدایښت مبداء څه ده؟<br>- آیا کاني د سونګ توکې غیر قابل تجدید دي؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | - د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی زده کونکو ته د چوپ لوستلو سپارښت کوي.<br><br>– ستونزمن لغات او اصطلاحات توضیح کوي او نوې پوښتنه کوي د مثال په توګه: ستاسو په نظر د نفتو او د ډبرو د سکرو د پیدایښت منشا څه شي ده؟<br>– ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه تصحیح کوي او د کاني سونګ موادو له جملې څخه د ډبرو د سکرو او نفتو په باره کې توضیحات ورکوي.<br>– د تدریس په دوام سره ښوونکی زده کوونکي په ډلو ویشي هره ډله د سونګ د توکو د تیتوالی په اړه په افغانستان کې بحث وکړي او پایله یې ټولګي ته واوروي.<br>– د لوست د پای پوښتنې پوښتي.<br>– د ټولګي بهر فعالیت سپارښت دې وکړي. | – په چوپه د نوي لوست لوستل او له ښوونکی څخه د ستونزمنو لغاتو او اصطلاحاتو پوښتنه کول.<br>– د پوښتنو ځواب وایي.<br><br><br><br><br><br><br>– زده کوونکي په ډلو تنظیم شي او د خپلو معلوماتو له مخې د سوند د زیرمو د سیمو نومونو واخلي.<br><br><br>– پوښتنو ته ځواب ووایي. | ۳۵ دقیقې |

**۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱– د سمنګان د صوف د درې، د پلخمري کرکر، د سیغان د درې ، اشپشته، د هرات کرخ، د تخار بنګي.

۲– دا توکي حیواني منشاء لري د سمندري حیواناتو د ګنده کیدو څخه د زیات فشار لاندې په اوږدې مودې کې د ځمکې د رسوبې طبقاتو په منځ کې منځته راځي.

۳– په ژمی کې د کورونو د تودولو لپاره، د غذایي توکو د پخولو، او د ګازي څراغونو د روښانه کولو لپاره.

**۹– د ښوونکي لپاره اضافې معلومات او فعالیتونه:**

- د سونګ توکي عبارت دې له نباتی فوسیلونو څخه چې د ډبرو د سکرو په شکل په سرپل، دره صوف، اشپشته، هرات او تخار کې په زیاته اندازه شته دي.
- نفت او ګاز په سرپل (جرقدق) کې په زیاته اندازه شته. که څه هم نفت او ګاز د خلکو د لګښت لپاره لږ تولیدیږي خو که ورڅخه ګټه واخیستله شي؛ د هېواد د اړتیاوو ډیره برخه رفع کوي.

## د درویشتم لوست د تدریس د لاربنود پلان

**د تدریس موده (دوه درسی ساعتونه)**

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | په افغانستان کې صنایع او سوداګري | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>- د افغانستان د صنایعو او سوداګرۍ سره آشنایي.<br>جزیي موخې:<br>- صنعت تعریف کړي.<br>- د صنعت د ډولونو نومونه واخلي.<br>- د افغانستان د غوره لاسی صنایعو نومونه واخلي.<br>- د افغانستان د ماشیني صنایعو وضعیت بیان کړي.<br>- د افغانستان د اقتصاد په وده او پرمختګ کې د سوداګرۍ رول او اهمیت باندې خبرې وکړي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | پوښتنه او ځواب، توضیحي، ډله ییز بحث او خبرې کول. | |
| ۴- دلوست مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، دهر راز صنایعو عکسونه | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | لیکلي، شفاهي او عملي کار | وخت په دقیقې |
| ٦- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **پیلوونکی فعالیت او د انګیزې پیدا کول:**<br>- دتختې پر مخ د عنوان لیکل.<br>- ستاسو په نظر مصرفي توکي څرنګه تولیدیږي؟ دوه مثاله ورکړئ.<br>- آیا د افغانستان په اقتصادي وده کې سوداګري مهم تاثیر لري؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | - د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - په افغانستان کې د سوداګرۍ او صنايعو په باره کې پوښتنه.<br>- ښوونکی د زده کوونکو د نظريو د اوريدلو نه وروسته د صنعت په تعريف او د هغه په ډولونو باندې خبرې کوي او وروسته زده کوونکو ته د لوست د چوپړو لوستلو توصيه کوي.<br>- د لوست ستونزمن لغات او اصطلاحات توضيح کوي.<br>- ښوونکی نوې پوښتنه کوي. د افغانستان مهم لاسي او ماشيني صنايع کوم دي او د څه لپاره پکاريږي.<br>- ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه سموي او د افغانستان پر اقتصاد د سوداګرۍ د نقش او اهميت په باره کې خبرې کوي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او له هرې ډلې غواړي په لاسي صنايعو، ماشيني صنايعو او سوداګرۍ په افغانستان کې سره بحث وکړي او پايله ټولګي ته بيان کړي.<br>- د لوست د پای له پوښتنو څخه پوښتنه کوي.<br>- د ټولګي د باندې فعاليت سپارښت کوي. | - د هغه په شاوخوا کې ځواب<br><br>- د نوی لوست چوپ لوستل او د مشکلو اصطلاحاتو پوښتنه کول.<br><br>- د پوښتنې ځواب ورکوي.<br><br>- زده کوونکي په ډلو کې تنظيم شي او په خپل ډلی کې موضوع څيړي.<br><br>- پوښتنوته ځواب ورکوي. | ۳۵ دقيقې |

**۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱- اومو او لومړنيو توکو ته داسې تغير اوبدلون ورکول چې د ګټې اخيستنې وړ وي صنعت وايي.

۲- د غالۍ اوبدل د فارياب د دولت آباد، اندخوی، آقچې د بلخ، دولت آباد، قرقين، کندز او د هرات د خلکو په منځ کې رواج لري.

۳- د وړۍ اوبدلو فابريکه، ماشين خانه، د کابل د جنګلک فابريکه، د بغلان د قند فابريکه، د کندز د سپين زر غوړيو فابريکه، د مزار شريف د بخار او بريښنا پروژه، د سمنټو فابريکه، د نغلو،سروبې، درونټې، ماهيپر، کجکي او ګرشک د اوبو د برښنا د توليد دستګاوې.

۴- د هر هېواد پرمختګ او ترقي، د کورنيو توليداتو په ډيرو ډولونو او زياتوالي پورې اړه لري.

۵- د افغانستان صادرات په لومړۍ درجه کې حيواني محصولات لکه وړۍ، عام پوستکي، کولمې، د قره قل پوستکي، غالۍ او ټغر او په دوهمه درجه نباتي محصولات، قيمتي ډبرې او طبي نباتات دي چې بيلو بيلو هېوادونو ته صادريږي.

**۹- د ښوونکي لپاره اضافي معلومات او فعالیتونه:**

- په پخو او ګټورو توکو باندې د اومو توکو بدلون ته صنعت ویل کیږي.
- د غالۍ اوبدلو صنعت په شمالي برخو، هرات او شینډنډ کې زیاته وده کړې ده.
- لاسي صنایع خامک ګنډل، لونګۍ اوبدل په شمالي سیمو او هرات کې لیدل کیږي.
- د پلخمري او ګلبهار نساجي او د غوري او جبل السراج سمنټ او داسې نور زموږ د هیواد ماشیني صنایع دي.
- د صنایعو نقش په ملي عاید کې ډیر د پاملرنې وړ دی او عایداتی اقلام یې د قالینی اوبدلو په صنعت کې د پاملرنی وړ دي.

## د څلرویشتم لوست د تدریس د لاربنود پلان

د تدریس موده (دوه درسی ساعتونه)

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | مواصلاتي جغرافیه | |
| ۲– د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>– د مواصلاتي جغرافیې سره آشنایي.<br>جزیي موخې:<br>– لویه لاره تعریف کړي.<br>– د لویو لارو د ډولونو نومونه واخلي.<br>– په افغانستان کې د وچو لویو لارو وضعیت بیان کړي.<br>– د هوایي لیږد رالیږد اهمیت بیان کړي. | |
| ۳– د لوست ډولونه | توضیحي، خبرې کول، ډله ییز بحث، پوښتنه او ځواب | |
| ۴– دلوست مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د وچې د لارو عکسونه او هوایي ډګرونه | |
| ۵– د ارزونې ډولونه | لیکلی، شفاهي او عملي فعالیت | وخت په دقیقو |
| ۶– په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **پیلوونکی فعالیت او د انګیزې پیدا کول:**<br>– د تختې پر مخ د لوست د عنوان لیکل.<br>– آیا لویې لارې او د لیږدرالیږد وسایل د خلکو په ژوند کې اهمیت لري؟ بیان یې کړئ. | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | - د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| – د نوي لوست چوپ لوستل.<br><br>– ښوونکی د لوست ستونزمن لغات او اصطلاحات توضیح کوي او نوې پوښتنه کوی. له زده کوونکو څخه غواړي چې د لارې معنی تعریف کړي او د اهمیت په باره کې یې بحث وکړي.<br>– د زده کوونکو ځواب تصحیح کړي او نوې پوښتنه کوي د افغانستان د مواصلاتي لارو تقسیم بندی توضیح کړي.<br>– د زده کوونکو ځوابونه تصحیح او د لارو د ډولونو او اهمیت او کار اخیستو په باره کې توضیحات ورکړي او وروسته زده کوونکي په ډلو ویشي او د هرې ډلې نه غواړي چې د وچې لارې، هوایي لارې او سرحدي بندرونو په باره کې سره بحث وکړي.<br>– د لوست په پای کې لوست جمع بندی او خلاصه کړي او د لوست د پای پوښتنې پوښتي.<br>– د ټولګي د بهر فعالیت سپارښت وکړي. | – د نوي لوست چوپ لوستل او د لوست د مشکلو لغتونو او اصطلاحاتو پوښتنه کول.<br>– د پوښتنې ځواب وایي.<br><br>– زده کوونکي په ډلو کې تنظیم شي او په خپله ډله کې کار کوي او پایله یې ټولګیوالو ته توضیح کوي.<br>– مهم نکات په خپلو کتابچو کې یادداشت کړي. | ۳۵ دقیقې |

**۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱– د فرهنګ او تمدن په پراختیا کې او د قومونو او ملتونو په نږدې کیدو کې د لارو رول زیات ارزښت لري. لارې د شتمنیو د زیاتیدو سبب کیږي.

۲– حیواني کاروان اوښ، آس او کچر.

۳– هغه لاره چې الوتکه یې له یوه ښاره تر بله ښاره پورې وهي هوایي لار ورته ویل کیږي.

۴– اسلام آباد، نوی ډیلي، تهران، دوبۍ، شارجه، بیجنګ، فرانکفورت او د هغو سیمو څخه بیرته راتګ د کابل او کندهار هوایي ډګرونو ته کیږي.

۵– د سوداګریزو مالونو لیږد رالیږد د تورخم، سپین بولدک، اسلام کلا، تورغنډۍ او د آمو د سیند د غاړو بندرونو تاشګذر، شیرخان بندر، حیرتان او کلفت د بندرونو له لارو کیږي.

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه)**

- مواصلاتي جغرافیه: د هغو لویو او وړو وچو لارو، سمندري لارو او د هوایي الوتنو د کړښو مطالعه ده چې خلک او سوداګریز توکې او مالونه له یوه ځایه بل ځای ته لیږدوي.
- په وچه کې اسفلت شوې لارې د موټرو او د اوسپنې لارې، په سمندر کې سمندري ډاډمنې لارې د لویو او کوچنیو بېړیو په واسطه، په هوا کې دفضایي پرواز کرښې، د بیلو بیلو الوتکو په واسطه کیږي.
- په افغانستان کې د وچې لارې د کابل له مرکز څخه ټولو ولایتونو ته کښل شوې دي. د هندوکش په برخه کې د سالنګ تونل د هېواد د شمال او جنوب سره نښلوي. حلقوی لویه لاره بیل بیل ولایتونه سره وصلوي خو د افغانستان پر مرکزي سیمه کې لوی لوی غرونه د ترانسپورتي کرښو مانع ګرځي هیله ده چې په مالي او اداري ثبات سره دا ستونځه حل شي.
- هوایي لیږد رالیږد ډیر چټک دی نړیواله سوداګري یې ډیره نږدې او آسانه کړې ده خو په هوایي پروازونو کې یې د مالونو قیمت لوړ کړی دی. ډیره ارزانه لیږدونه په سمندر کې د بیړۍ په واسطه او په وچه کې د ریل د کرښو په واسطه ترسره کیږي. د موټر ترانسپورت په منځنۍ بیه تامیږي.

## د پنځه ویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس موده (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د آسیا موقعیت او څلور خواوې | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندي موخوته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>- د آسیا د څلور خواوو او موقعیت سره بلدتیا.<br>جزیې موخې:<br>- د آسیا د شاوخوا د سمندرونو نومونه واخلي.<br>- غرونه، آبناګانې او کانالونه چې د آسیا لویه وچه له نورو لویو وچو څخه جلا کوي د نقشې پرمخ وښیي.<br>- د آسیا د لرغونو تمدنونو نومونه واخلي.<br>- د آسیا د نقشې پرمخ د بیلو بیلو دینونو او مذهبونو خپرېدل وښيي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | خبرې کول، ډله ییز بحث، پوښتنه او ځواب، توضیحي | |
| ۴- د لوست مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، د آسیا د لویې وچې نقشه، د آسیا د دینونو او مذهبونو نقشه. | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | لیکلی، شفاهي او عملي فعالیت | وخت په دقیقې |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **پیلوونکی فعالیت او د انګیزی منځته راوړل:**<br>- د تختې پرمخ د لوست د عنوان لیکل او د یوې پوښتنې پوښتل د موخې او انګیزې منځته راتګ سره.<br>- ستاسو په نظر ډېره لویه او پراخه لویه وچه کومه ده؟<br>- کوم لوی دینونه د آسیا په لویه وچه کې منځته راغلي دي؟ | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقي | - د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | - د نوي لوست چوپ لوستل او د لوست د ستونځمنو لغاتو او اصطلاحاتو پوښتل.<br><br>- زده کوونکي په ډلو کې ویشل کیږي او په مطرح شویو موضوعاتو باندې بحث کوي. | - د نوي لوست دچوپ لوستلو هڅونه.<br><br>- ښوونکی د نوي لوست ستونزمنو لغتونو او اصطلاحاتوته توضیح ورکوي اودنړۍ نقشې ته په پاملرنې له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د آسیا دلویې وچې څلور خواوې او موقعیت بیان کړي.<br><br>- د زده کوونکو ځوابونه تصحیح کړي او نوی پوښتنه کوي آیا آسیا او اروپا لویې وچې دي.<br><br>- د زده کونکو ځوابونه تصحیح او هغوې په بېلوبېلو ډلو ویشي او له هغوی څخه غواړي د آسیا د دینونو او تمدنونو په باره کې بحث او خبرې وکړي او پایله ټولګی ته ووایي. ښوونکی د ډلو پرکارونو باندې نظارت کوي او د لوست وروستۍ پوښتنې پوښتي.<br>- د ټولګي نه د بهر فعالیت سپارښت وکړي. |

**۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱- په شمال کې شمالي کنګل سمندر، په ختیځ کې آرام سمندر او په جنوب کې د هند سمندر.

۲- الف - اورال.

ب- سور سمندرګی - سویز

ج- بیرنګ

۳- عربستان، هند او هند و چین

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعاليتونه):**

- ځرنګه چې آسيا لويه وچه ده په شمال کې يې شمالي کنګل سمندر د زياتو يخچالي زيرمو سره پروت دی.
- د آسيا په ختيځ کې آرام سمندر چې ډېر پراخ دی وجود لري چې د تيفون د توفانونو منبع ده او د آسيا ختيځ ته ډير تاوانونه رسوي.
- دهماليا دلړيو لوی او لوړ غرونه د (ايورست) دلوړې څوکې سره شتون لري چې د آسيا دسيندونو لويه زيرمه جوړوي.
- د آسيا لرغوني تمدنونه: د چين لرغونی تمدن، بين النهرين، د آمو حوضه، د سند حوضه چې د مدني نوښتونو زانګو وه او لومړني مهاجرتونه له همدې لويې وچې څخه پيل شوي او د بيرنګ د آبنا له لارې يې امريکا ته د مهاجرتو لار موندلې ده.

## د شپږ ویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس موده (دوه درسی ساعتونه)

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د آسیا طبیعي جغرافیه | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندني موخو ته ورسیږي.<br>کلي موخه:<br>- د آسیا د لویې وچې د غرونو سره بلدتیا.<br>جزیې موخې:<br>- د تیتس د لرغوني سمندر د موقعیت او د هغه د پاتې شوو نښو سره بلدتیا.<br>- د آسیا د غرونو پیژندنه او د هغو موقعیت د نقشې پرمخ.<br>- د آسیا په لویه وچه کې د جګو سطحو څخه خبرتیا.<br>- د آسیا د لویې وچې د نامتو دښتو سره بلدتیا. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي روش، ډله ییز کار، یوازې مطالعه | |
| ۴- دلوست مرستندویه توکي | د آسیا د لویې وچې طبیعي نقشه | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | لیکلی، شفاهي او عملي فعالیت | وخت په دقیقو |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **پیلوونکی فعالیت او د انګیزې پیدا کول:**<br>- له زده کوونکو څخه پوښتنه کوو: تر اوسه مو د تیتس د سمندر نوم اوریدلی دی؟<br>- آیا پوهیږئ د جیولوژي دوهم دوران په څه وخت کې وو؟<br>- آیا پوهیږئ تکتونیکي فعالیتونه یعنی څه؟<br>- آیا پوهیږئ د آسیا د غرو لړۍ څه نومونه لري؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | - د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - د لوست عنوان پر توره تخته لیکي.<br>- له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په چوپه ولولي.<br>- ښوونکی سخت لغات او اصطلاحات پر توری تختې لیکي او د هغو په باره کې توضیحات ورکوي.<br>- زده کوونکي په څو ډلو ویشي او هرې ډلې ته فعالیت ټاکي.<br>- هره ډله د یوه فعالیت په باره کې کار کوي لکه:<br>۱- د تیتس د پاتې شونو جهیلونو پیدا کول.<br>۲- د آسیا د طبیعي نقشې په مرسته د آسیا د غرونو لړۍ.<br>۳- د آسیا د طبیعي نقشې په مرسته د آسیا لوړې سطحې.<br>۴- د آسیا د طبیعي نقشې په مرسته د آسیا د لویې وچې دښتې.<br>د هرې ډلې استازی د نقشې په مرسته د خپل فعالیت پایله ټولګیوالو ته وایي د لوست په پای کې ښوونکی، لوست جمع بندي او خلاصه کوي او د ټولګي څخه د بهر فعالیت زده کوونکو ته سپارښتنه کوي. | - زده کوونکي لوست لولي او د سختو لغتونو معنې له ښوونکی څخه پوښتي.<br>- تعریف او مهم اصطلاحات په خپله کتابچه کې لیکي.<br>- په ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي او فعاله نقش په کې لوبوی.<br>- د کتاب د پوښتنو ځوابونه په خپلو کتابچو کې لیکی.<br><br>- په یوه چوکاټ (سپینه یا بی نومه نقشه) کې د اسیا د لویي وچې جهیلونه، د غرو مهمی لړۍ، لوړې سطحی او د مهمو دښتو نومونه ولیکي. | ۳۵ دقیقې |

**۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱- د هندوکش د غرو لړۍ د افغانستان په هېواد کې واقع ده. د هندوکش غرونه له شمال ختیځ لوري څخه د جنوب لویدیځ په لور پراته دي.

۲- د همالیې د غرو لړۍ د هند په شمال کې ده چې له ختیځ څخه لویدیځ ته پراته دي. لوړه څوکه یې ایورست نومیږي او د سمندر له سطحې څخه ۸۸۴۸ متره جګوالي لري.

۳- د ایران غرونه د البرز او زاګروس په نامه او د ترکیې غرونه د پونتیک او اناتولی په نامه یادیږي. د البرز غرونه د ایران په شمال کې او زاګروس غرونه د ایران په جنوب لویدیځ کې پراته دي. د پونتیک غرونه د ترکیې په شمال کې او اناتولي غرونه دترکیې په مرکزی برخه کې پراته دي.

۴- په آسیا کې د تیتس سمندر یو لوی سمندر ووچې د آسیا ټولې ځمکې په دوهم جیولوژیکي دورې کې پوښلې وې. د ارال او بالخاش جهیلونه او کسپین او تور سمندرګی د تیتس سمندر له پاتې شونو څخه دي.

۵- د آسیا مهمې دښتې: د مغولستان دښتې، د کویرلوت دښتې په ایران کې، د سورېې دښتې، د عراق او ربع الخالي دښتې په عربستان کې دي.

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه)**

- د آسیا لویه وچه د جیولوجي په دوهمه دوره کې د یو لوی سمندر د اوبو لاندې وه چې د تیتس په نامه یادیده. په دریمه دوره کې د دې لوی سمندر څخه بهر راووته او د همالیا، تیانشان، قـــــــراقرم، کوئن لون، هندوکش، البرز، زاګروس او قفقاز لوړ غرونه منځ ته راغلل او د آسیا ننۍ لویه وچه جوړه شوه تاسې دا غرونه د نقشې پرمخ د زده کوونکو په واسطه په نښه کړئ.
- د تیتس د سمندر پاتې شوني هغه جهیلونه او سمندرګي دي چې د آسیا د لویې وچې په منځ کې دي د مثال په توګه د کسپین سمندرګی، بالخاش او یو شمیر جهیلونه چې د چین او آسیایي روسیې په خاوره کې دي.
- د آسیا دغرنیو لړیو څخه کولای شو د پامیر او تبت لوړې سطحې او د هزاره جات او د کن لوړو سطحو څخه نوم واخلو.

## د اوه ویشتم لوست د تدریس د لاربنود پلان

د تدریس موده (دوه درسی ساعتونه)

| عنوانونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د آسیا د لویې وچې د سیندونو په باره کې څه پوهیږئ؟ | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندنې موخو ته ورسیږي.<br>هواړخیزه موخه:<br>- د آسیا د سیندونو سره بلدتیا.<br>جزیي موخې:<br>- د آسیا د هغو سیندونو سره بلدتیا چې په شمالي کنګل سمندر کې توییږي.<br>- د هغو سیندونو د سرچینو سره بلدتیا چې د آرام سمندر په سمندرګیو کې توییږي.<br>- د هغو سیندونو سره بلدتیا چې د آسیا په داخلي جهیلونو کې توییږي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي روش، ډله ییز کار او یواځې لوستل | |
| ۴- دلوست مرستندویه توکي | د آسیا د سیندونو نقشه | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | تقریري، لیکلی او عملي کار | وخت په دقیقې |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **مقدماتي فعالیت او هڅونه:**<br>- د آسیا د لویې وچې طبیعي لویه نقشه دې د ټولګي په مخ کې وځړوی، له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې دې نقشې ته وګوري او له هغې څخه دی پوښتنه وکړي.<br>- د آسیا د لویې وچې په شمال کې کوم سمندرګي پراته دي او کوم سیندونه په کې توییږي؟<br>- د آسیا په ختیځ کې کوم سمندرګي پراته دي او کوم سیندونه پکې توییږي؟<br>- د آسیا په جنوب کې کوم سمندرګي او خلیجونه پراته دي او کوم سیندونه پکې توییږي؟ | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقې | - د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | – زده کوونکي لوست په چوپه لولي او ستونزمن لغات له ښوونکي نه پوښتي.<br><br>– د آسیا طبیعي نقشې ته پاملرنه کوي او د آسیا د شاوخوا سیندونو او سمندرګیو پلټنه د نقشې پرمخ کوي.<br><br>– د آسیا د سیندونو سرچینه د نقشې پرمخ ټاکي.<br><br>– زده کوونکي په ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي. | – د لوست عنوان د تورې دړې پرمخ ولیکئ.<br>– له زده کوونکو څخه وغواړئ چې لوست په چوپه ولولي او وروسته ستونزمن لغات او اصطلاحات له تاسو څخه وپوښتي.<br>– د آسیا د سیندونو د حوزو په باره کې زده کوونکو ته توضیحات ورکړئ.<br>– د شمالي حوزو سیندونه، ختیځ، جنوب او هغه سیندونه چې د آسیا په داخلي جهیلونو کې تویږي د نقشې له مخې زده کوونکو ته وښیئ.<br>– د آسیا د مهمو سیندونو سرچینې او هغه سمندرګي چې سیندونه پکې تویږي د نقشې پرمخ دې زده کوونکو ته وښودل شي.<br>– زده کوونکي په څلورو ډلو وویشئ هره ډله دې د آسیا په طبیعي نقشه کې هغه سیندونه چې شمالي سمندرګیو، جنوبې او داخلي جهیلونو ته تویږي مشخص کړي او پایله دې په ټولګی کې بیان کړي.<br>– په پای کې لوست جمع بندي کړئ.<br>– د زده کړې د ټېنګښت او اطمینان لپاره وروستنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتئ.<br>– د ټولګي څخه د بهر فعالیت ته زده کوونکي وهڅوئ. |

**۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱– د آسیا سیندونه په څلورو شمالي، ختیځو، جنوبي او داخلي حوزو باندې ویشل کیږي.

۲– د آسیا د شمالي خوا سیندونه په ترتیب سره له لویدیځ نه ختیځ لور ته دا دي: د اوب ، ینسي او لینا سیند ونه.

۳– د آسیا هغه سیندونه چې د آرام سمندر، سمندرګیو ته تویږی دا دي: د آمور سیند، د هوا نګهوسیند او د میکانګ سیند.

۴– هغه سیندونه چې په آسیا کې د بنګال، فارس خلیج او عربو سمندرګي ته تویږي دا دي: د ګنګا سیند، د اټک(سند) سیند، د کارون سیند، او د دجلې او فرات سیندونه.

۵– د آمو سیند او سیر دریا د ارال جهیل ته تویږی.

۶– د کارون سیند د فارس خلیج ته تویږي.

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه)**

- د آسیا سیندونه د همالیا، هندوکش، البرز، زاګروس او د قفقاز د غرو له لړیو څخه سرچینه اخلي.
- هغه سیندونه چې په شمالي کنګل سمندر کې تویېږي. بیړۍ چلول پکې لږ دي؛ ځکه د کال ډېره موده کنګل وي.
- هغه سیندونه چې د آسیا ختیځ لورته بهیږي. لکه (هوا نګهو) د خړوبولو او بیړۍ چلولو زمینه په کې برابره ده چې د چین هیواد ور څخه ډېره ګټه اخلي.
- د سند او ګنګا سیندونه د آسیا په جنوب کې د بیړۍ چلولو ښه قابلیت لري. د برهما پوترا سیند د نیپال په جنوب او بنګله دیش کې د کرنې او بیړۍ چلولو ته ډېر برابر دي.
- د آمو، سیر دریا، هلمند او د کابل سیندونه هر یو په خپل وارسره د کرنیزو ځمکو په خړوبولو او حاصلخیزۍ کې ډېر مهم رول لري.

## د اته ویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس موده (دوه درسي ساعتونه)**

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د آسیا د لویې وچې جهیلونه، سمندرگي او خلیجونه | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندني موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>- د آسیا د لویې وچې د جهیلونو، سمندرگیو او خلیجونو سره آشنایي.<br>جزیي موخې:<br>- د آسیا د هېوادونو د مهمو جهیلونو سره بلدتیا.<br>- د آسیا په لویې وچې کې د مهمو خلیجونو سره بلدتیا.<br>- د آسیا د لویو داخلي، ختیځو، جنوبي او لویدیځو سمندرگیو سره بلدتیا. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي روش، ډله ییز کار او یواځې مطالعه | |
| ۴- د لوست مرستندویه توکي | د آسیا د لویې وچې طبیعي نقشه، د آسیا سپینه نقشه، د افغانستان سپینه نقشه. | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | تحریري، تقریري، عملي کار | وخت په دقیقې |
| ۶- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **پیلوونکي فعالیتونه او هڅونې:**<br>۱- د افغانستان او د آسیا د جهیلونو ځونمونې عکسونه زده کوونکو ته ښیي او د هغو نه پوښتنه کوي چې دا جهیلونه د خلکو په ژوند کې څه اغیزه لري.<br>۲- د آسیا نقشه زده کوونکو ته وښیي او د هغو څخه پوښتنه وکړئ چې خلیج یعنې څه؟ | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقي | - د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | -لوست په غور سره لولي او ستونځمن لغات له ښوونکی څخه پوښتي.<br><br>- د ښوونکی خبرو ته غوږ نیسي او د آسیا مهم جهیلونه د نقشې پرمخ ښیي.<br><br>- د جهیلونو د اهمیت په باره کې خبرې کوي.<br><br>- مهم خلیجونه د نقشې پرمخ ښیي او د هغو په باره کې نظر ورکوي.<br><br>- جهیلونه اوخیلجونه دسپینې نقشي پرمخ ښیي. | - د لوست عنوان د تورې دړې پر مخ ولیکئ.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړۍ چې لوست په چوپه ولولي او د لوستلو نه وروسته ستونزمن لغات او اصطلاحات ورته توضیح کړئ.<br>- د آسیا طبیعی نقشه د ټولګي په مخ کې وځړوئ او د آسیا د جهیلونو په باره کې او د خلکو په ژوند کې د هغه په اغیزو باندې توضیحات ورکړئ.<br>- د آسیا د هرې سیمې د جهیلونو نومونه دتورې دړې پرمخ ولیکئ، دا سیمې له چین، قزاقستان، قرغزستان، افغانستان، ایران، ترکیې او شمالي کوریا څخه عبارت دي.<br>د دې جهیلونو د اهمیت په باره کې له زده کوونکو سره خبرې وکړئ.<br>- د نقشې له مخې د آسیا د ختیځ جهیلونو، د آسیا جنوب او د ختیځې آسیا سمندرګي زده کوونکو ته وښيي.<br>- د خلیجونو د اهمیت په باره کې زده کوونکو سره بحث وکړئ.<br>- زده کوونکي په څو ډلو وویشئ او د هرې ډلې نه وغواړئ چې د آسیا مهم جهیلونه او خلیجونه د نقشې پرمخ وښیي او په پای کې د هرې ډلې استازی د خپلې ډلې د کار په اساس د نقشې پرمخ توضیحات ورکړي. |

**۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱- د بیرنګ سمندرګی، د ا خوتسک سمندرګی، د جاپان سمندرګی، ژیړ سمندرګی، او د ختیځ چین سمندرګی.

۲- د جاپان سمندرګی د جاپان هېواد له شمالي او جنوبي کوریا هېوادونه جلا کوي.

۳- د کسپین سمندرګی د آسیا په لویدیځ کې واقع دی.

۴- د آسیا په سواحلو کې د زیات تاو راتاو ځایونو په اساس ډیر خلیجونه په دې لویې وچې کې شته دي.

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه)**

- د آسیا جهیلونه ډېر زیات دي لکه: د ارال جهیل، د شیوا جهیل، د بالخاش جهیل، د چین د خاورې په منځ کې جهیلونه ټول د سیمې د مرطوب ساتلو لپاره زیات اهمیت لري. کب نیول هم پکې کیږي.

- د آسیا خلیجونه د بیړۍ چلولو، کب نیولو او د سوداګریزو بندرونو د جوړولو لپاره مهم رول لري. د مثال په توګه د بنګال په خلیج کې د کلکتې، رنګون او ډاکې ښارونه، بندرونه لري او هم سوداګریز او سیاسي لوی ښارونه لري چې خپلو هېوادو ته ډېرې ګټې لري.

## د نهه ویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت (دوه درسی ساعتونه)

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د آسیا د لویې وچې اقلیم | |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږی چې د تدریس په پای کې لاندني موخو ته ورسیږي.<br>هر اړخیزه موخه:<br>- د آسیا د اقلیم سره او د خلکو په ژوند باندې د هغه د تاثیراتو سره بلدتیا.<br>جزیې موخې:<br>- د آسیا د اقلیمي ویش سره آشنایي.<br>- د قطبي او یخچالي سیمو او د هغو د اقلیمي خصوصیاتو سره آشنایي.<br>- د تحت قطبي اقلیم د خصوصیاتو سره آشنایي.<br>- د ستپ د سیمې د اقلیم او خصوصیاتو نه خبریدل او آشنایي.<br>- د آسیا په لویه وچه کې غرني اقلیم سره آشنایي.<br>- د معتدله اقلیم، مدیترانه یي، استوایي سوانا، باراني ځنګلونو څخه او د هغو د خصوصیاتو نه خبرتیا. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي روش، ډله ییز کار او یواځې لوستل | |
| ۴- د لوست مرستندویه توکي | د آسیا اقلیمي نقشه، د لوست کتاب | |
| ۵- د ارزونې ډولونه | تحریري، تقریري او عملي کار | وخت په دقیقې |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **پیلوونکې فعالیتونه او هڅونې:**<br>- د آسیا د اقلیمونو، د ژوو او نباتی پوښښ عکسونه چې د دیوال په مخ د تورې دړې په څنګ کې وځړول شي.<br>- له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې څه ګومان کوئ، دا رنګه بوټي او ژوي د هوا په څرنګه حالت کې وده او ژوند کوي؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | - د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقي |
|---|---|---|
| – د لوست عنوان د تورې دړې پر مخ ولیکئ.<br>– له زده کوونکو څخه وغواړئ چې لوست په چوپتیا ولولي او وروسته خپلې پوښتنې له تاسو څخه وپوښتي.<br>– د آسیا د اقلیم ویش د تختې پرمخ ولیکئ.<br>– د هر اقلیمي ویش په څنګ کې یو عکس کیږدئ چې د هوا حالت، د بوټو پوښښ، د ځمکې په مخ ژوي، د کورونو جوړول او یا د خلکو د کالیو ډول وښیي.<br>– د کتاب د نقشې په مرسته هر ډول اقلیمي سیمه زده کوونکو ته وښیئ او د بوټو د پوښښ، د تودوخې د درجې او د اورښت ډول په هر راز اقلیم کې له زده کوونکو سره خبرې اترې وکړئ.<br>– د هر اقلیم د تاثیراتو په باره کې پر کرنیزو توکو باندې او د خلکو کورو په ډول بحث وکړئ.<br>– زده کوونکي په څو ډلو وویشئ او له هرې ډلې وغواړئ چې د آسیا د هرې سیمې د اقلیم په باره کې سره بحث وکړي او پایله یې د ډلې د استازي پواسطه ټولګیوالو ته وړاندې کړي.<br>– د ارزونې لپاره دې د لوست د پای له پوښتنو څخه له زده کوونکو څخه پوښتنه وشي.<br>– د لوست په پای کې د ټولګي، د باندې فعالیت زده کوونکو ته سپارښتنه وشي. | –زده کوونکي لوست په غور سره لولي او خپلې ستونزې له ښوونکي څخه پوښتي.<br>– زده کوونکي د آسیا داقلیم ویش په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– زده کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخلي او د هر اقلیم د خصوصیاتو په باره کې سره بحث کوي.<br>– زده کوونکي د آسیا نقشه رسمه وي او دآسیا هرراز اقلیمونه په ډول ډول رنګونو ښیي. | ۳۵ دقیقې |

**۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱– د قطبی او یخچالي سیمو اقلیم.

۲– کلنی اورښت یې ډېر زیات دی، هوا تل توده او لمده ده.

۳– استوایي اقلیم.

۴– د عربستان ټاپو وزمه.

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه)**

- د آسیا لویه وچه چې په نړۍ کې ډېره لویه او پراخه ده د جنوبي عرض البلد له ۱۰ درجو نه تر شمالي ۸۰ درجې عرض البلد پورې پراختیا لري. نو د دومره لوی والي په حساب بیل بیل اقلیمونه لري.
- د آسیا جنوب استوایي او باراني اقلیم لري چې د ربړونې پکې شنې کیږي د اندونیزیا او مالیزیا هېوادونو ته ډېره ګټه لري.
- په تحت استوایي اقلیم کې د مدیترانې د چاپیریال راز راز بوټي پکې شنه کیږي.
- خو په معتدله سیمه کې د چرنوزیم د خاورې شتون ډیر کرنیز استعداد لري.
- د معتدلې تایګاه د ځنګلونو اقلیم د لرګیو د صنایعو ډیره ښه سرچینه ده.
- د قطبي او تحت قطبي اقلیم د یخبندۍ او کنګل ځانګړنې لري او ډول ډول بوټي او ژوي پکې ژوند کوي.



## د دیرشم لوست د تدریس د لاربښود پلان

د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه)

| سرلیکونه | د مطالبو بیان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | بشري جغرافیه |
| ۲- د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>هراړخیزه موخه:<br>– د آسیا په لویه وچه کې د خلکو له نژاد، دینونو، ژبو او نفوسو څخه خبر تیا.<br>جزیي موخې:<br>– د آسیا په لویه وچه کې د نفوس د شمیر او د خلکو د تیت والي څخه خبرتیا.<br>– د خلکو د ګڼې ګوڼې د رابطې، د هوا د حالت شرایط، جغرافیایي موقعیت او د اقتصادي وضعیت څخه پوهیدل.<br>– د آسیا په لویه وچه کې د ګڼ میشتو هیوادونو سره آشنایي.<br>– د آسیا په ځینو برخوکې دوګړو دکمښت دعوا ملوپوهه.<br>– د آسیا په لویه وچه کې د مهمو ژبو څخه خبرتیا.<br>– د آسیا په لویه وچه کې د نژادونو او دینونو د تنوع سره آشنایي. |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي روش، ډله ییزې خبرې، سوال او ځواب |
| ۴- د لوست مرستندویه توکي | د آسیا د لویې وچې سیاسي نقشه، د آسیا د لویې وچې طبیعي نقشه. |
| ۵- د ارزونې ډولونه | لیکلی، تقریري |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | پیلوونکی فعالیت او هڅونه:<br>– د آسیا د لویې وچې د بېلوبېلو نژادونو عکسونه، د آسیا د لویې وچې د الفبا او یا د مذهبي مرکزونو نمونې د ټولګي په مخ کې د تورې دړې په څنګ کې په دیوال وځړوي او وروسته دې د هغو په باره کې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:<br>– دا نژادونه د آسیا د لویې وچې په کوموځایونو کې ژوند کوي؟<br>– په هره اندازه چې د آسیا د لویې وچې شمال خواته لاړ شو د خلکو د پوټکي رنګ توریږي او یا سپینیږي؟ علت یې څه شی دی؟ |



| وخت په دقیقې | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقې | - لوست له پاملرنې سره لولي.<br>- د آسیا په لویه وچه کې هغه هیوادونه چې لرغوني لري په خپلو کتابچو کې ولیکئ.<br>- د آسیا د هیوادونو نومونه، ژبې او د خلکو دینونه په خپلو کتابچو کې په یو جدول کې ولیکي.<br>- د آسیا په لویه وچه کې ګڼ میشته هیوادونه په خپلو کتابچو کې لیکي:<br>- د آسیا مهم نژادونه او د هغو د ژوند مهم مرکزونه په خپلو کتابچو کې په یو جدول کې ولیکي.<br>- زده کوونکی په څو ډلو وویشل شي او دهری ډلې غړي په کارونو کې ونډه واخلي. | - دآسیا په لویه وچه کې د وګړو د تیټ والي نقشه د تورې درې پرمخ او یا د دیوال پر مخ په ټولګي کې وځړوي.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې لوست یو ځل په چو په ولولي او وروسته ستونزمن لغات له تاسو څخه وپوښتي.<br>- د آسیا په لویه وچه کې ګڼ میشت هیوادونه د تختې په سر ولیکئ له زده کوونکو څخه دې هېوادونو کې د وګړو د زیاتوالي سبب وپوښتئ او وروسته صحیح ځواب د تختې پرمخ ولیکئ.<br>- د آسیا د هیوادونو نومونه پر تورې درې ولیکئ.<br>- د آسیا د هیوادونو د خلکو دین او ژبي په یو جدول کې ولیکئ.<br>- د آسیا د لویې وچې نژادي ویش د تورې تختې پرمخ ولیکئ د سپین، ژیړ او تور نژاد د ژوند کولو مهم مرکزونه په جدول کې ولیکئ.<br>- زده کوونکی په څو ډلو وویشئ.<br>- هرې ډلی ته یوه پوښتنه په نښه کړئ او د ډلې له غړو وغواړئ چې د هغه د ځواب په باره کې سوچ وکړي او ځواب يې پیدا کړي.<br>- د ارزونې لپاره د لوست د پای له پوښتنو څخه له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ.<br>- په پای کې له زده کوونکو څخه د ټولګي څخه د بهر فعالیت سپارښت وکړئ. |

۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه

د جدول د پوښتنو ځوابونه:

الف: د مسلمانانو مقدس ځایونه په سعودي عربستان او فلسطین کې دي.

ب: د آسیا ګڼ میشت هیوادونه عبارت دي له: چین، هند، اندونیزیا، پاکستان، بنګله دیش، جاپان او د هند و چین هیوادونه.

ج: ژیړپو ستکي د آسیا په ختیځ، جنوب ختیځ او د سایبریا په سیمو کې ژوند کوي.

د: د نفوس ګڼوالی په هغو سیمو کې دی چې د ژوند ښه شرایط د ډیر اوربښت، حاصلخیزه خاوره او د کارپیداکیدل ولري.

هـ: کمرنګه تورپوستکي د هند په جنوب، سریلانکا او د مالدیو په ټاپوګانو کې ژوند کوي.



| |
|---|
| و: په هغه ځایونو کې چې وګړي لږ دي صحرايي سيمې، سوړ اقليم، غرنۍ سيمې، ځنګلي او باطلاقي تودې او لمدې سيمې پکې شامل دي. <br> ز: ژبه د انسانانو په منځ کې د افهام او تفهيم وسيله ده. |

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعاليتونه):**

- په آسيا کې د وګړو موضوع د ډېرې پاملرنې وړ ده همدا اوس د چين وګړي (۱،۳۳۰،۰۰۰،۰۰۰) څخه زيات دی او د هند په هيواد کې د وګړو شمير (۱۱۴۸ ۰۰۰ ۰۰۰) تنو ته رسيږي. نو ځکه د زيږدونو او د کورنيو بيلانس د ماشومانو د شمير په حساب ضروري دي.
- ډېری ژبې هم د دې لويې وچې د پراختيا پر اساس ده. د چينايي ژبې، جاپانې، روسي، اردو، عربي، دري، پښتو، او داسې نورو ژبو ويونکي په دې لويه وچه کې زيات دي.
- په دې لويه وچه کې زيات دينونه شته دي. مثلاً د اسلام مقدس دين او دبوديزم آئين چې په دې لويه وچه کې اکثريت لري.
- د زردشتي او تائوييزم آيينونه هم په محدوده اندازه کې دي.



## د یو دیرشم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه)

| سرلیکونه | د مطالبو بیان |
|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | اقتصادي جغرافیه |
| ۲– د زده کړې موخې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>**هراړخیزه موخه:**<br>– د آسیا په لویه وچه کې د کرنې له وضعې نه خبریدل او د اقلیم له ډولونو سره، اړیکې یې.<br>– په آسیا کې د وریجو او چایو د کرنې د مهمو مرکزونو څخه خبرتیا.<br>**جزیي موخې:**<br>– په آسیا کې د مالدارۍ د مهمو مرکزونو څخه پیژندنه.<br>– په آسیا کې د پیل (فیل) د مهمو مرکزونو څخه پیژندنه. |
| ۳– د لوست ډولونه | توضیحي روش، ډله ییزې خبرې |
| ۴– د لوست مرستندویه توکې | د آسیا د لوېې وچې اقتصادي نقشه، په مهمو هیوادونوکې دکرنیزو مرکزونو عکسونه. |
| ۵– د ارزونې ډولونه | لیکلي، تقریري ، شفاهي او عملي کار |
| ۶– په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | پیلوونکی فعالیت او هڅونه:<br>– په آسیا کې د مهمو کرنیزو محصولاتو د کروندو د مراکزو عکسونه لکه وریجې او چای د زده کوونکو په مخ کې کیږدئ او د هغو نه په دې باره کې پوښتنه وکړئ. پوښتنې دا دي.<br>۱. د آسیا ډیر خلک د کومو کارونو له لارې خپل ژوند پرمخ بیایي.<br>۲. د آسیا د وریجو او چایو د کرنې مهم مرکزونه په کومو ځایو کې پراته دي. |



| وخت په دقیقې | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | - دلوست په پاملرنې لوستل.<br>پو ښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست د ډلو جوړول او په خبرو اترو کې ونډه اخیستل او پایله یې ټولګي ته اوروول.<br>- د پوښتنو ځوابونه په خپله کتابچه کې ولیکی. | - د لوست عنوان د تختې پرمخ ولیکئ.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې لوست په چوپه ولولي. وروسته د خپلو ستونزو په برخه کې له تاسو څخه پوښتنه وکړي.<br>- په آسیا کې د کرنیزو سیمو د مرکزونو عکسونه زده کوونکو ته وښیئ او د دې نقشو او عکسونو په مرسته لاندې پوښتنې وکړئ.<br>- د آسیا دلوېې وچې په کومو سیموکې دغنمو، اوربشو اوجوارو د کښت مرکزونه پراته دي؟ ولې داسیمې کرنې ته برابرې دي؟<br>- دآسیا دلوېې وچې په کومو سیمو کې د وریجو د کښت مرکزونه پراته دی؟ ولې دا سیمې کښت ته مناسبې دي؟<br>- د آسیا په لویه وچه کې د چا یو د کښت مرکزونه په کوم ځای کې دي؟<br>- د ابتدایي او پرمختلي تخنیکي کښت توپیر څه دی؟ او د کښت د ښه کیدو لپاره باید کوم کارونه وکړو؟<br>- په افغانستان کې د څارویو د روزنې لپاره په کومو ځایونو کې مهم مرکزونه شته؟<br>- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او د یوې ځانګړې موضوع په باره کې سره بحث وکړي او د بحث پایله ټولګي ته واوره وي.<br>- په پای کې دې لوست جمع بندې کړي.<br>- د ارزونې لپاره د لوست د پای پوښتنو څخه پوښتنه وکړئ.<br>- په پای کې دې د ټولګي د باندې فعالیت تـه د زده کوونکو پاملرنه واړول شي. |

۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه

۱. د آسیا د لویې وچې اقتصاد په کرنې تکیه لري. (سم)

۲. آسیایي هیوادونه کوښښ کوي د غذایي موادو د برابرولو لپاره د کرنیزو تولیداتو اندازه زیاته کړي. (سم)

۳. دآسیا په وچو سیموکي زیاتې وریجې تولیدیږي (سم) وریجې ډیرې په لمدو سیموکي کرل کیږي. (ناسم)

۴. د آسیا په وچو سیمو کې د چایو تولید په هند، پاکستان، سیلون او بنګله دیش کې ډیر اهمیت لري. (سم)

د ټولګي څخه بهر فعالیت:

پیل (فیل) د تی لرونکو حیواناتو له جملې څخه دی او د نړۍ په تودو او لمدو سیمو کې ژوند کوي. د آسیا په جنوب ختیځو هیوادونو کې روزل کیږي. له پیل څخه په کرنیزو کارونو او حمل و نقل کې ترې کار اخیستل کیږي.

۹– د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه):

د آسیا لویه وچه چې ځمکې یې ډیره پراختیا لري له ځانګړنو څخه یې د کرنې زیات تولیدات، هرراز اقلیم، ډول ډول نژادونه، ډیری ژبې او د نباتي پیداوارو ډولونه پکې لیدل کیږي.

هرراز کرنیز بوټي لکه چای د استوا په اقلیمي سیمه کې، غنم، اوربشې او جوار په معتدله او ستپ سیمه کې او پنبه په تحت استوایي سیمه کې کرل کیږي.

د مالدارۍ مهم مرکزونه په ستپ او چرنوزیم سیمه کې، وریجې په استوایي او تحت استوایي سیمو کې له مالیزیانه تر چین او جاپان پورې پراختیا لري.

پیل (فیل) د استوایي او تحت استوایي سیمی له حیوانانو څخه دی چې په هند او سیلون کې ډیر دي.

## د دو ديرشم لوست د تدريس د لاربنود رهنما

د تدريس وخت (دوه درسي ساعتونه)

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | کانونه او صنايع |
| ۲- د زد ه کړې موخې (پوهنيزې مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د تدريس په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>هراړخيزه موخه:<br>- د آسيا په لويه وچه کې د کانونو او صنايعو څخه خبرتيا.<br>جزيي موخې:<br>- د آسيا په لويه وچه کې د مهمو کاني زيرمو سره بلدتيا لکه نفت ګاز او د ډبرو سکاره.<br>- د آسيا په لويې وچې کې د مهمو صنعتي هيوادو سره بلدتيا (جاپان، روسيه).<br>- د آسيا د لويې وچې د مهمو صنعتي توليداتو سره آشنايي.<br>- د آسيا د لويې وچې د ځينو مهمو توريستي ځايونو سره آشنايي. |
| ۳- د لوست ډولونه | توضيحي روش، ډله ييزې خبرې |
| ۴- د لوست مرستندويه توکي | د آسيا د قارې د صنعتي محصولاتو عکسونه، د آسيا د کانونو او صنايعو د توزيع نقشه، د آسيا د قارې د توريستي مهمو مرکزونو عسکونه. |
| ۵- د ارزونې ډولونه | تقريري، تحريري. |
| ۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | پيلوونکی فعاليت او هڅونه:<br>- د نفت او ګازو د ويستلو او تصفيې عکسونه دې زده کوونکو ته وښودل شي.<br>- د جاپان، روسيې، هند او چين د خلکو جمهوريت د صنعتي مرکزونو عکسونه د ټولګي په ديوال کې وځړوئ.<br>- د اسيا د پرمختللي هيوادونو د صادراتو د نمونو عکسونه او يا د افغانستان د هيواد دصادراتو او وارداتو نقشې د هغو هيوادو سره چې مالونه يې افغانستان ته وارديږي زده کوونکو ته وښيي او په دې باره کې له هغو څخه پوښتنې وکړئ. |



| وخت په دقیقې | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | لوست له پاملرنې سره لولي.<br>– د آسیا په قاره کې مهمې کانې زیرمې او هغه هیوادونه چې دا کاني مواد تولید وي نو مونه يي اخلي.<br>– د آسیا په لویه وچه کې د نفتو او ډبرو سکرو د تولیدونکو هیوادونو نومونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– د آسیا په لویه وچه کې مهم صنعتي هیوادونه او د هغو د پرمختگ علتونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>– د ځینو آسیایي هیوادونو د بیرته پاتې کیدو علتونو په باره کې له یو بل سره بحث وکړي او پایله يي ټولگی ته واوروي.<br>– په افغانستان کې د توریستیکي منظرو او آثارو نومونه واخلي او توضیح دې کړي چه د توریزم د پرمختگ لپاره په هیواد کې څه وکړو.<br>– زده کوونکي په ډلو ویشل کیږی او پر موضوع بحث کوي. | – د لوست عنوان پرتورې دړې ولیکي.<br>– له زده کوونکو څخه وغواړئ چې لوست په چوپه ولولي او که پوښتنه لري له ښوونکي څه يي پوښتنه وکړي.<br>– د آسیا په لویه وچه کې د نفتو او گازو د را ایستنې د مرکزونو عکسونه زده کوونکو ته وښیي.<br>– د توری دړی په مرسته د نفتو، گازو، دډبرود سکرو تولیدونکي هیوادونه د آسیا په لویه وچه کې زده کوونکو ته وروپیژنئ.<br>– د نفتو تولیدونکي هیوادونه عربستان، عراق، ایرانُ کویت، امارات د فارس د خلیج په برخه کې او اندونیزیا او میانمار د آسیا په جنوب ختیځ کې دي.<br>– د ډبرو د سکرو په تولید کې ایران، ترکیه او هند مشهور دي.<br>– په روسیې، چین او هند کې د صنعتي مهمو صنعتي مرکزونو عکسونه زده کوونکو ته وښیي او د دې هیوادونو دکالیو د نمونو نومونه پر تورې دړې ولیکي. د دې هیوادونو د صنعت د پرمختگ او د ځینو هیوادونو وروسته پاتې والی له نورو هیوادو څخه له زده کوونکو سره پرې بحث وکړئ د مثال په توگه جاپان له عراق سره پرتله کړئ.<br>– د آسیایي هیوادونو په اقتصاد کې د توریزم د صنعت د اهمیت په باره کې لکه هند بحث وکړئ د افغانستان په هیواد کې توریستیکي آثار زده کوونکو ته وروپیژنئ.<br>– زده کوونکي دې په ډلو وویشی او د بحث ځانگړې موضوع دې ور په گوته کړي.<br>د ډله ییز فعالیت یادونه نه ده شوی.<br>– د لوست د پای پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتي.<br>– د ټولگی د باندې فعالیت سپارښت کوي. |

۸– د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱. نفت ډیر په عربستان، عراق، ایران، کویټ، امارات، اندونیزیا او میانمار په هیوادونو کې شته دي.

۲. د آسیایي هیوادونو ثقیله صنایع عبارت دي له: د موټر جوړولو صنایع، تراکتور او کمباین، د لارو جوړولو ماشین آلات، بیړۍ جوړول او د اوسپنې ویلې کیدل دي.



۳. د آسیا مهم صنعتي هیوادونه روسیه، هند، چین او د جاپان هیوادونه دي.

**۹- د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه):**

- له هغه ځایه چې د آسیا لویه وچه زیاته پراختیا لري. کانونه او صنایع یې هم ډېرزیات دي او تولیدات یې د لیدلو وړ دی.
- نفت او ګاز د فارس خلیج، قفقاز او د کسپین سمندرګي پرشاوخوا سیمو کې په زیاته پیمانه شته دي.
- د روسیې د ډېرو سکاره د کوزنتسک او دونباز په سیمو کې، په چین، افغانستان، ایران، ترکمنستان او ازبکستان کې هم د پاملرنې وړ دی.
- د آسیا د صنعتي هیوادو څخه جاپان، روسیه، هند، مالیزیا، او چین ډېر اهمیت لري چې هم خفیفه صنایع لري او هم ثقیله.
- د آسیا توریستي مرکزونه د چین لوی دیوال، د ایورست څوکه د همالیا په غرونو کې، د بایکال جهیل، د قفقاز ساحه او د عراق، افغانستان، ایران، سعودي عربستان او هند تاریخي آثار پاملرنه ځانته را اړوي.

## د دري ديرشم لوست د تدريس د لارښود پلان

د تدريس وخت (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | د مطالبو بيان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د آسيا مواصلاتي جغرافيه |
| ۲- د زد ه کړې موخې (پوهنيزې مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>**هراړخيزه موخه:**<br>- د آسيا په لويه وچه کې د مواصلاتي لارو سره آشنايي.<br>**جزيي موخې:**<br>- د آسيا د ډيرې لرغوني مواصلاتي لارې (د وريښمو لارې) سره آشنايي.<br>- د مواصلاتي لارو له ويش نه خبرتيا.<br>- د آسيا په لويه وچه کې د اوسپنو لارو، سمندري لارو او هوايي لارو سره بلدتيا. |
| ۳- د لوست ډولونه | توضيحي روش، ډله ييزې خبرې |
| ۴- د لوست مرستندويه توکې | عکسونه او تصويرونه د اوسپنو له لارو، بيړيو او الوتکو څخه. |
| ۵- د ارزونې ډولونه | تقريري، تحريري. |
| ۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | پيلوونکی فعاليت او هڅونه:<br>- يوه پوښتنه: تر اوسه مو د وريښمو د لارې په باره کې څه اوريدلي دي، دې لارې په پخوا زمانو کې کوم هيوادونه سره نښلول او څه اهميت يې درلود؟ د اوسپنو د لارو د عکسونو ښودل، په يوه بندر کې دبيړيو د عکسونو ښودل او د آلوتکې عکس زده کوونکو ته وښيي او د دې خطو نو دهريو ښه توب زده کوونکو ته بيان کړي. |



| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| - له زده کوونکو څخه وغواړئ چې لوست په چوپه ولولي او خپلې ستونزې له تاسو څخه وپوښتي.<br>- د لارو ډولونه او د هغو ویش پرتــورې دړې ولیکي.<br>- د روسیې د اوسپنې ډیرې اوږدې لارې په باره کې معلومات ورکړي.<br>- هغه مهم هیوادونه چې د آسیا په لویه وچه کې د اوســپنې لارې لــري زده کوونکــو تــه وروپیژني.<br>- د آسیا د لویې وچې د امکاناتو په باره کــې لکه سمندرګي او خلیجونو باندې یې بحــث وکړي او د آسیا مهم آبناګانې زده کوونکو ته ورو پیژني.<br>- د اوسنۍ نړۍ د نړیوالې سوداګرۍ په برخــه کې د فارس د خلیج او د عمان د سمندرګي د اهمیت په باره کې بحث وکړئ.<br>- زده کوونکي په ډلوو ویشــئ. د هغــو نــه وغواړئ چې د اوبیزو، وچو لارو، د اوسپنې لارو او هوایي لارو په باره کې سره بحــث وکړي او پایله دې ټولګیوالو ته واوروي.<br>- له زده کوونکو څخه دلوست د پــای پوښــتنې پوښتي.<br>- د کورنۍ دندې سپارښتنه دې وکړي. | - زده کوونکي دې لوست په پــاملرنې ولولي.<br>- د آسیا د قارې مهم هیوادونه چــې د اوسپنې لارې لري نومونه یې اخلي.<br>- د آسیا د لویې وچې د اوسپنې مهمــې لارې په نقشه کې ښیي.<br>- د اوبو، وچې او د اوسپنو دلارو د ارزښت په هکله سره بحث کوي.<br>- په ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي.<br>- د لوست د پای پوښتنو ته ځواب ورکړي. | ۳۵ دقیقي |

۸- د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:

۱- په وچو لارو کې د موټرو سړکونه او د اوسپنې لارې شاملې دي.

۲- د اوسپنې لارې ډیرې ارزانه او ډیر د امن لرونکي دي.

۳- د هرمز آبنا د عمان سمندرګي او د فارس د خلیج ترمنځ پرته ده.

۴- د سویزکانال سور سمندرګی او د مدیترانې سمندرګی سره نښلوي.

**۹– د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه):**

- د آسیا لویه وچه چې ډېر لرغونې براعظم دی، په وچه او د سمندرونو په غاړ وکې ډېرې لرغونې سوداګریزې لارې لري.
- د وریښمو سوداګریزې لویې لارې د چین دولت له اروپا او مصر سره نښلاوه، لویو کوشانیانو او کابل شاهانو دا لویه لاره څارله. په افغانستان کې د وریښمو لاره د سنکیانګ څخه افغانستان ته داخلیده د خواک، بروغیل، اندمین له غاښو، بلخ، بامیان، هرات، مشهد او فارس څخه به د وریښمو کاروانونه تیریدل. یوه لاره د خواک له غاښي د وریښمین تنګي په لور، پیښور او لاهور ته تله او یوه لار دبروغیل له غاښي څخه کشمیر او بنارس ته تللې وه. بله لار د ازبکستان، ترکمنستان، ایران، د کسپین له سیمې، قفقاز، ترکیې او مصر ته تلــه. اروپــایي هیوادونو وریښمین سوداګریز کالي لېږدول.
- د اوسپنې لویه لاره له ولادیواستوک څخه ترلینن ګراد پورې غزیدلې ده چې په نړۍ کــې لــومړنۍ اوږده د اوسپنې کرښه ده.
- سمندري مواصلاتي کرښه له جاپان څخه تر مصره پورې په لرغونو آسیایي مدنیتونو کې له ډېــر پخــوا څخــه موجوده وه چې اوس یې ډېره پراختیا کړیده.



## د څلور دیرشم لوست د تدریس د لارښود پلان

د تدریس وخت (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطالبو بیان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د آسیا سیاسي جغرافیه |
| ۲- د زده ه کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د تدریس په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>هراړخیزه موخه:<br>– د آسیا د لویې وچې د سیاسي ویش سره آشنا يي.<br>جزیي موخې:<br>– د آسیا د لویو او کوچنیو هیوادو سره بلدتیا.<br>– د آسیا د لویې وچې د سیاسي ویش نه خبرتیا.<br>– د آسیا د لویې وچې د هغو هیوادو له ستونزو سره بلدتیا چې آزاد سمندر ته لار نلري.<br>– د اروپایانو په واسطه د آسیایي هیوادونو د استعمار له عواملو څخه خبرتیا.<br>– د افغانستان د هیواد د خپلواکۍ د بیرته اخیستلو سره آشنا يي. |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي روش، ډله ییزې خبرې |
| ۴- د لوست مرستندویه توکي | د اسیا د لویې وچې سیاسي نقشه. |
| ۵- د ارزونې ډولونه | تقریري، تحریري. |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | پیلوونکی فعالیت او هڅونه:<br>– له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې تاسې کوم یو په سیاسي جغرافیه، باندې پوهیږئ؟<br>– د اسیا د لویې وچې سیاسي نقشه زده کوونکو ته وښیي او له هغو څخه وغواړۍ چې نقشې ته وګوري او د آسیا په لویه وچه کې د څو لویو او کوچنیو هیوادو نومونه واخلي. |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - د لوست عنوان پر توري درې ولیکئ.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې لوست په چوپه ولولي او خپلې پوښتنې له تاسو څخه وپوښتي.<br>- د زده کوونکو پاملرنه د کتاب نقشې ته یا یوې لویې نقشې ته چې د آسیا سیاسي ویش ولري واړوئ.<br>- زده کوونکو ته توضیح کړئ چې د آسیا په لویه وچه کې ۴۶ خپلواکه هیوادونه شته. د دې هیوادونو حکومتي نظام له یو بل څخه توپیر لـــري. د ځینـــو هیوادونو د حکومتي نظام په باره کې مثال ورکړئ.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په آسیا کې د هغو هیوادونو نومونه واخلي چې سمندر تـــه لار لري. سمندرو ته د دغو هېوادو د لارو د لرلـــو ګټې بیان کړئ.<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په آسیا کې د هغو هیوادونو نومونه واخلي چې سمندر ته لار نه لري. د دې هیوادونو ستونزې زده کوونکو تـــه بیان کړي او له هغو سره بحث وکـــړي چـــې د ستونزو د حل لپاره څه کارونه کولای شو.<br>- د آسیایي هیوادونو د استعمار د علتونو په باره کې او هغه هیوادونه چې دا لویه وچه یـــې اســـتعمار کړې ده توضیح کړئ.<br>- ټولګی په ډلو ویشی او ډ له ییز فعالیت یې ورپـــه ګوته کوي.<br>- د ارزوني لپاره د لوست د پای د پوښتنو پوښتنه وکړئ.<br>- د لوست په پای کې د ټولګي د باندې فعالیـــت سپارښت دې وشي. | - زده کوونکي لوست په دقت سره لولي.<br>- د آسیا د لویې وچې د هیوادونـــو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په یو جدول کې د دې هیوادونو د حکومت ډول او همدا چې د نړۍ مهمو سمندرګیو ته لاس رسي لري او یا یې نلري ویې ټاکي.<br><br><br><br><br><br><br><br><br><br>- په ډله ییز بحث کې فعالـــه ونـــډه اخلي. | ۳۵ دقیقي |

**۸– د لوست د پای د پوښتنو ځوابونه:**

۱. سیاسي جغرافیه د جغرافي د علم یوه څانگه ده چې د هیوادونو د څلورو خواوو، کورنیو او نړیوالو اړیکو او اداري تشکیلاتو په باره کې بحث کوي.

۲. په افغانستان، ایران، پاکستان او نورو کې.

۳. افغانستان، ازبکستان، ترکمنستان، تاجکستان، قزاقستان او نور.

۴. د آسیا لویه وچه ډېر قیمتي کانې زیرمې، مهم کرنیز محصولات او د خرڅلاو ښه بازارونه او ګڼ نفوس لري. په همدې سبب د اروپایي هیوادونو پاملرنه یې ځانته جلب کړې وه.

**۹– د ښوونکي لپاره زده کړه (اضافي معلومات او فعالیتونه):**

- د آسیا سیاسي ویش له پخوا څخه تر اوسه پورې ډېر بدلون موندلی دی.
- د نړیوالې عمومي جګړې څخه د مخه آسیایي هیوادونه لږ وو. یو شمېر تر لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته خپلواکۍ ته ورسیدل.
- په هغه وخت کې د آسیا لوی هیوادونه چین او روسیه وو.
- کوچني هیوادونه یې ازبکستان، تاجکستان، سوریه او لبنان وو.
- د چین، جاپان، اندونیزیا، مالیزیا، هند، روسیې، سعودي عربستان، ایران او داسې نور هیوادونه سمندر ته لارلري.
- د دوهمې نړیوالې جګړې څخه وروسته د هند، پاکستان، متحده عربي امارات او د خلیج هیوادونه خپلواکۍ ته ورسیدل.
- د افغانستان، نیپال، ازبکستان، تاجکستان او قرغزستان او داسی نور هیوادونه سمندر ته لار نلري. نو ځکه په سوداګري کې د ترانزیت له حق څخه کار اخلي.
- آسیایي هیوادونه د لومړۍ او د وهمې نړیوالې جګړې څخه وروسته د استعمار څخه د آزادی نهضت پیل کړ او د آسیا د وچې ډېر هیوادونه خپلواک شول له هغې جملې څخه افغانستان په کال ۱۹۱۹ کې د امیر امان الله خان په مېړانه خپله خپلواکي ترلاسه کړه.